## حمد

ساتلي يې په غرونو کې مرغان په خپل قدرت
خالق دی ودان کړی ټول جهان په خپل قدرت

لويي ورسره ښه ده رحمېدلی پر هر چا دی
راپورته چې يې لمر کی پر اسمان په خپل قدرت

د خوار بنده پر ژبه لا راغلی شکر نه دی
ژوند ډېر ورته اسان کی پاک سبحان په خپل قدرت

له چا خخه دُنيا واخلي څوک واخلي له دُنيا نه
څوک ور ولي مزار ته د جانان په خپل قدرت

دا ژوند هم موږ په خپله خوښه نه تېروو دلته
پر مځکه باندې هم نه يو روان په خپل قدرت

را اوروي د شنه اسمان له خوا نه کله کله
پر موږ د رحمتونو ډک باران په خپل قدرت

اُميد لرم پردېس چې د منزل خوا ته روان وي
کړي خدای به زکندن ورته اسان په خپل قدرت

١٣٨٦\١\١٠

# نعت شريف

اى نسـيمه د ورتلـو سـته اُميدونـه زمـا
د نبـي(ص) روضـې تـه يـو سـه سـلامونه زمـا

محتـرم تـه مـي اواز د سـلګو و رسـوه
نصـيب رانـه كـړل پـه لاس كـي سـره ګلونـه زمـا

ورتـه وايـه مسـلمان دی مسـلمان قتلـوي
مـوږ څـه وكـړو ګرانـه وا وره فريادونـه زمـا

چي پـوره مـي ستا روضـې تـه سي ارمان د ورتلـو
نـور دي خـاوري پـر دُنيـا سـي ارمـانو نـه زمـا

خـوار پـردېس دي پـه محشـر شـفاعت غوارمـه
د دې سـتړي ژونـدون وركـړه احوالونـه زمـا

۱۳۸۵\۱۰\۲۰

# مور

موري چې زړګی دي ازار نه کړمه
خپل ژوندون به هیڅکله خوار نه کړمه

ستا دُعا دي ما ته سي ډيوه د لاس
بې له دې رڼا تلل په لار نه کړمه

تا ته به په کومه ژبه مور وايم
سر چې ستا له ميني نه جار نه کړمه

ځان ته به هيڅ حق د ژوندون ور نه کړم
شپې چې دي خدمت کي سهار نه کړمه

ټوله ورځ که سر په زنګون کښېنمه
موري ستا حقونه به شمار نه کړمه

ستا خبري ټولي نيکمرغي ګڼم
ځکه خو پردېس تري انکار نه کړمه

**۱۳۸۴\۵\۷**

د مور د نړیوالي ورځي په مناسبت

# بېلتون

هغه ښایسته او نازولی اشنا
زما په غم کي زوریدلی اشنا

چي د بېلتون شېبه مو منځ کي راغله
په چیغو ژړیدلی اشنا

په دې خاطر چي ما له اوره خلاص کړي
پر د ښتو غرونو ګرځیدلی اشنا

ځکه دُنیا سوه د غمونو ډکه
چي پکښې نسته زما ښکلی اشنا

د پردېس زړه ته به قرار رانه سي
چي سو تنها ورڅخه تللی اشنا

۱۳۸۲\۵\۱۴

# بې صبري

د زړګـــي وینـــي رانـــه خـــوري د انتظـــار شـــېبې دي
زمــــا اشـــنا کلـــه راځـــي د انتظـــار شـــېبې دي

د یـــار لپـــاره چـــي ســـهار مـــي لـــه بـــاغچې راوړی
لاس کـــي مـــي ګـــل مـــړا وی کـــوي د انتظـــار شـــېبې دي

خـــوږه خـــوږه خنـــدا بـــه ســـتا مـــي کلـــه وځـــي لـــه زړه
ترخـــه ترخـــه ســـوه زنـــدګي د انتظـــار شـــېبې دي

شـــپه تـــر ســـبا ویښ یمـــه ســـتوري د اســـمان حســـابم
فکـــر مـــي ســـتا کـــوڅې تـــه ځـــي د انتظـــار شـــېبې دي

کلـــي کـــي اوســـه نـــه رقیـــب ســـته نـــه غمـــاز نـــه بېلتـــون
پردېســـــه دا دي آخیـــــري د انتظـــــار شـــــېبې دي

۱۳۸۴\۱۱\۳۰

# اظهار

راسه اشنا زړه مې پر انګار د میني وګوره
د پېر لري ثواب لړ ورته لار د میني وګوره

تا به د جانان لاسونه ځان ته پرېښوولای نه
ای ځیري ګریوانه انتظار د میني وګوره

ما دي صرف ښکل کړي دي په شونډو د قدم خاوري
ولاړ سه تر ما بل څوک تا بعدار د میني وګوره

زه کوم قسم چي یو ساعت رانه هیرېږې نه
لري رانه مه ګرځه آزار د میني وګوره

ښکلې پام د عشق پر لمن تور داغونه مه ایږده
هغه نړېدلی غر یادګار د میني وګوره

نور پردېس د قطر او دُبۍ خوبونه نه ویني
دلته په ځنځیر سوګرفتار د میني وګوره

۱۳۸۴\۱۲\۲۵

# ديار کلی

هر مازديګر يې د ديدار په نوم دی
خلکو دا کلی مې د يار په نوم دی

ځکه بې واره پر تندي اوري دل
کاڼي يې هر يو د سنګسار په نوم دی

ډېر لوني ورڅخه سر ټکوي
مينه کې خوند د انتظار په نوم دی

زړګيه شپه او ورځ که نه پېژني
زلفې يې شپه مخ د سهار په نوم دی

ورته کتی نه سم ليمې مې سوځي
او ريې بل کړی د سينګار په نوم دی

د ژوند ساعت د خوشحالۍ ملګری
ديار پر شونډو د اقرار په نوم دی

پردېسه ځکه درته بيا راغلمه
ښکلی موسم د نو بهار په نوم دی

۱۳۸۵w۴w۲۸

# یادګار

زه یـــې دیـــدن تـــه وم راغلـــی د مـــودو نـــه وروســـته
جانـــان مـــي داســـي راتـــه وویـــل د ســـلګو نـــه وروســـته

د زړه پـــر کـــور مـــي باچـــاهي اوس د ارمـــان چلیـــږي
د وران د ظلـــم پکښـــې تېـــر ســـو اُمیـــدو نـــه وروســـته

زمـــا ګنـــاه نـــه ده ای خلکـــو ملامـــت نـــه یمـــه
ګـــلاب د هـــر ســـړي خوښـــیږي د خوشـــبو نـــه وروســـته

وختـــه چـــي څـــومره دي زمـــوږ پـــه زړونـــو لـــوبي وکـــړې
خـــو بیـــا هـــم شـــمعه پتنـــګ غـــواړي د لمبـــو نـــه وروســـته

کـــه د غـــرور ســـر عـــاجزۍ تـــه ټیـــټ ســـو څـــه پـــروا کـــړي
د کبـــر جـــام لـــري ارمـــان نســـکوریدو نـــه وروســـته

جانانـــه ســـتا پښـــتنو ســـترګو نـــوی رنـــګ پیـــدا کـــی
چـــي دي پـــردېس کړمـــه قبـــول د قســـمو نـــه وروســـته

۱۳۸۲\۳\۳

# ارمان

د لاس دي نښــــي څـــو ګلونـــــه ګلابــــي راغلــــي
د ســـترګــو اوښــکي ورتــه زمــا پــه هــر کلــي راغلــي

کوګــــل زنـــدان زړه بنـــد يوان ســـو د عمرونـــو پکښـــې
اوس دي يادونــــه ملاقـــات تـــه د بنــــدي راغلــــي

ګلونـــه ماتـــه د خپـــل ځـــان صـــفت پـــه وار وار کـــوي
ښــکاري چــي ســتا د ښــکلو شــونډو پــه ســيالي راغلــي

پــه ګلــورين قلــم مــي ســتا ښــکلی تصــوير جــوړ کــړی
ګـــــوره خـــــولې د رقيبـــــانو پـــــر تنـــــدي راغلــــي

پــــه دې ناترســـه مـــرور وخـــت کـــي يـــې وکـــړه وفـــا
ســـتا ســـلامونه ای اشـــنا پـــه خـــو شـــحالي راغلـــي

الله دي را ولـــــه د ګـــــل پـــــه شـــــان ښايســــته جانانــــه
ســـتا پـــه راتلـــو مـــي د زړه بـــڼ تـــه پســـرلي راغلـــي

راســـه پـــه غټـــو غټـــو ســـترګو يـــې نـــن وکـــه ديـــدن
پـــردېس تـــه ســـپين کفـــن وروســـتۍ جـــوړه کـــالي راغلـــي

۱۳۸۴\۲\۱۱

# بس دی

زړه مـــي پو هيـــدلی د جانـــان خبـــري نـــه غـــواړي
بـــس دی بـــس دی نـــوري د ارمـــان خبـــري نـــه غـــواړي

ګـــل چـــي د بهـــار مـــو ســـم کـــي پـــاڼي پـــاڼي ولـــو ېږي
هغـــــه د بلبـــــل او د بـــــاغوان خبـــــري نـــــه غـــــواړي

زړه خـــو مـــي د يـــار د ېـــرو وعـــدو اوس صـــبر کـــړی دی
ســـترګي هـــم د اوښـــکو د بـــاران خبـــري نـــه غـــواړي

زه د ســـر نـــه تيـــروم کـــه اشـــنا مـــي وفـــا کـــړي وای
چـــا ويـــل چـــي پـــردېس بـــه د تـــاوان خبـــري نـــه غـــواړي

۱۳۸۴\۷\۱۲

# کبر جن

قدر یې د حُسن راسره دی ډېر
نه کوي خبري بیګانه دی ډېر

هري خوا ته ځي خو رخصت نه غواړي
نه هیرېږي خلکو ښایسته دی ډېر

سختي شپې د غم تیروي ما باندي
خاندي او خوشحال له ژوندانه دی ډېر

زما ورته په خوله کي زارۍ ختمي سوې
بیا هم د رقیب ظالم په خوله دی ډېر

خدایه د خزان ښخه یې و ساتې
رنګ یې د ګلاب ښخه کم نه دی ډېر

کوم قاضي ته وړاندي کړمه دا دعوه
زړه یې رانه وړی سخت په زړه دی ډېر

غم دی چي پردېس یې زنګولی دی
ولي خلک وایي چي نشه دی ډېر

۱۳۸۵\۴\۴

# تللی اشنا

زړګیه نور اشنا موندلای نه سې
راغی بېلتون ترې خلاصیدلای نه سې

د دیدنونو وروسته ورک سو جانان
د ژړا وروسته یې هیرولای نه سې

زړګیه قدر دي سو کم تر اغزي
د ګل په ثنګ کي دریدلای نه سې

بس دی خوبونو کي مي مه زوروه
یاره په ویښه چي راتللای نه سې

د زړه محل کي دي عزت لیدلی
د اشنا غم مه ستنیدلای نه سې

زه به دي هیر نه کړم په ټوله ژوندکي
دا ته مي ولي یادولای نه سې

پردېس مځکه باندي کښېږده قلم
تصویر د ښکلي جوړولای نه سې

۱۳۸۴\۸\۳۰

# انتظار

ما درته فرش کړلې جانانه په ګلونو لاري
راسه خوشحاله یې کړه په خپلو قدمونو لاري

چې د راتلو زیری دي وسو هک حیران سومه زه
ورو ورو منزل ته رسېدې د ارمانو نو لاري

ما چې زړګی درکی او تا پرې سرې لمبې بلې کړې
مینه کې بېلې سوې د سوال او ځوابو نو لاري

خو بیا مې هم نه سي باور چې تا به وګټمه
زه د فرهاد غوندي که وباسم تر غرونو لاري

ژوند ته مې نه پرېږدي زما لیونی فکر وایې
راځه پرې ځو مره ښایستې دي دیادو نو لاري

ستا صداقت به لکه غر سي ترېنه لري پاته
مخ ځني اړوي پردېسه د وختونو لاري

۱۳۸۴\۹\۳۰

# مینه

د دې دُنیـــا هغـــه ســـړی مـــي ســـړي څُـــور ګڼلـــی
چـــي مینـــه نـــه پېژنـــي زړه بانـــدي مـــي تـــو ر ګڼلـــی

دا ســـتا پـــه ســـر کـــه دار تـــه پورتـــه ســـم پـــروا نـــه لـــرم
یـــو افتخـــار دی یـــاره تـــا ولـــي پېغـــور ګڼلـــی

چـــا کـــړل اوبـــه د ورور پـــه وینـــو د وطـــن فصـــلونه
چـــا د زړه بـــڼ د محبـــت پـــه نـــوم سمســـور ګڼلـــی

تـــل د ګـــلاب پـــه شـــان ښایســـت او خـــو شـــبوئي بـــه لـــري
چـــي خـــړي خـــاوري چـــا د ځـــان لپـــاره کـــور ګڼلـــی

حـــالاتو ورکـــړل پرهرونـــه د پـــرد ېس زړګـــي تـــه
بـــس یـــوه مینـــه مـــي پـــر هـــر لـــره ټکـــور ګڼلـــی

۱۳۸۴\۱۰\۲۶

# اوبه

چښــــلي مـــــي د خـــاورو پــــه جـــامونو کـــــي اوبـــه
خوښـــــيږي مــــي پــــه ټولـــــو نعمتونـــــو کـــــي اوبـــه

تـــا ونيـــــولم لــــه لاســـه زه پـــر حـــال د ډوبېـــدو وم
تعبيـــر يـــــې راکـــه ويـــنم پـــه خوبونـــو کـــي او بـــه

جـــوړه بـــه د جانـــان ســره کـــړم لاس پـــه دُعـــا پورتـــه
هلمنــــده تـــــل دي غواړمــــه ســـيندونو کـــــي اوبـــه

د تـــورو زلفـــو ســيوري کــي دي مــخ داســي معلـــوم ســو
کـــټ مـــټ لکـــه پـــه تـــورو تـــورو غرونـــو کـــي اوبـــه

بېلتـــو ن غمـــاز هجـــران رقيـــب هـــيڅ نـــه راتـــه ښــکارېږي
زړګـــــی مــــي ســـو د يـــار پـــه ســـتمونو کـــي اوبـــه

اشـــنا د هجرشـــــپو کـــــي ديـــدن راوړی تـــر پردېســـه
قســـمت راتـــه پيـــدا کـــړې پـــه اورونـــو کـــي اوبـــه

۱۳۸۴\۱۰\۲۹

# خوشحالي

راغی اختر د خوشحالو سره
ورک سو خفګان د اسویلو سره

هر کله راسې د خوښی اختره
جانان راځي ستا په راتلو سره

چې همېشه وي په اختر کې دیدن
اوسیږم تل د اُمیدو سره

جانانه راسه زموږ وران کلي ته
د سرو ګلونو او غنچو سره

چې د اختر په سهار یار ووینم
زړګی مې وړي تش په کتو سره

ما ستا پر سر ټوله خپلوان پردي کړه
ته کوې مینه د پردو سره

د پردېس مینه دي په زړه کې نسته
ځکه نه وینو په کلو سره

۱۳۸۴\۱۱\۲۷

# پټ راز

زمـــا جانــــان څـــومره اثـــر د ســـترګو تـــور کـــي ســـاتي
زمـا غونـدي يـار بـې هـر يـو غـم د زړه پـه کـور کـي سـاتي

دا د حــــــالاتو پېرزوينــــــه ده چـــــي دا ســــــي کـــــوي
ګلونـــه ټـــول خـــاموش او ســـيرې بلبـــل شـــور کـــي ســـاتي

پـــوه ســـومه ښـــکلې مـــخ تـــه ســـتا کتـــل ګنـــاه نـــه لـــري
ړنـدې مـي سـترګي سـه نظـر چـي پـه بـل لـور کـي سـاتي

بـــل چـــا تـــه ســـر نـــه ټيټـــوم د هغـــه خـــداى بنـــده يـــم
چـي يوسـف سـاتي پـه کـوهي کـي خليـل اور کـي سـاتي

د عشــق ژونـدون د عشــق جنـون د عشــق قـانون مـي خـوښ دی
څـوک پـه خنـدا پورتـه کـړي دار تـه څـوک پېغـور کـي سـاتي

تـــــا بـــــه ويـــــل پردېســـــه زه درســـــره مينـــــه لـــــرم
دغـــه يـــو يـــاد دی چـــي يادونـــه دي پـــه زور کـــي ســـاتي

۱۳۸۵w۵w۲۱

# وفا

کلــه وي زیــات او کلــه کــم دی مــا قــرار نــه پرېــږدي
پــوهیږم نــه چــي د چــا غــم دی مــا قــرار نــه پرېــږي

د بېــر وفــادار دی رســوي بــه مــي تــر قبــره پــوري
زمــا د عمــر ســره ســم دی مــا قــرار نــه پرېــږدي

د زخمــي زړه پــه پرهرونــوکي مــي څــه لټــوي
شــیندي پــرې مالګــه کــه ملهــم دی مــا قــرار نــه پرېــږدي

زه خــو پښــتون یــم د میلمــه غــم درنــاوي کومــه
افســوس چــي ده کــړی قســم دی مــا قــرار نــه پرېــږي دي

نــن مــي پــه خیــال کــي تصــویر ولیــد ومــي نــه پیژنــدی
ویــل د پــردېس څنګــه قلــم دی مــا قــرار نــه پرېــږ دي

۱۳۸۵\۴\۲۶

# زارۍ

نه عذاب نه بُتخانې زما په کار دي
نه شراب نه پیمانې زما په کار دي

نه مې خوښ دی انتظار ستا د راتللو
نه رباب نه ترانې زما په کار دي

مخ پټ نه کړې هسې نه چې لیونی سم
نه نقاب نه زولنې زما په کار دي

ما په مینه درته راوړی خو تا وویل
نه ګلاب نه نښانې زما په کار دي

زه دي ښکلو اننګو کې نور څه وینم
نه کتاب نه افسانې زما په کار دي

پردېس ځای غواړمه ستا د زړه په کور کې
نه ځواب نه بهانې زما په کار دي

۱۳۸۵\۹\۱۴

# پخواني کتل

یــا ره زمــا ســره دي ســترګي ښــه پخــه دښــمني غــواړي
راتــه کــړي د مــرګ ګواښــونه رانــه ژونــد ارمــاني غــواړي

نــوی زخــم مــي پــرزړه دی خــو عــلاج یــې ډېــر اســان دی
چــي پــه شــونډو کــي مســکی ســې ســتا کتــل پخــواني غــواړي

یــو دي یــا د دی بــل دي غــم دی چــي لاس نــه راځخــه اخلــي
یــو ارمــان راتــه پرېــږدي او بــل مــي ښــکلې ځــواني غــواړي

خوشــحالي او خنــدا ولاړه اوښــکي راغلــې تــر ګریوانــه
زړه لا اوس هــم راتــه وایــي محبــت پریشــاني غــواړي

مــورېد مینــي لیــوني یــو د رواج ځنځیــر مــو خــوښ دی
همېشــه پــه هــر قــانون کــي زولنــې لیــوني غــواړي

پــردېس ســتا د زړه پــه کــور کــي اوســیدل غــواړي تــول عمــر
نــه دي وړی د ډوډۍ دی نــه هــم ســتا مهمــاني غــواړي

لښکرګاه دشپې ۳:۱۱
۱۳۸۵\۹\۱۰

# اختر

تـــــه راکــــوې د خندیـــــدلو اجـــــازه اختـــــره ؟
درتـــــه معلومـــــه ده د غـــــم مـــــي انـــــدازه اختـــــره ؟

پـــه چـــا دي ښـــکل کړلـــې د چـــا د قـــدمونو خـــاوري
پـــــه چـــــا د یـــــار د کـــــور ځنځیـــــر او دروازه اختـــــره

زمـــــا ژونـــــدون دی ازلـــــي د اند ښـــــنو ملګـــــری
رانـــــه خفـــــه نـــــه ســـــې ســـــپیڅلې پـــــاکیزه اختـــــره

هغـــه کوڅـــه زمـــورږ د کلـــي نـــن هـــم تـــا نـــه وینـــي
پـــــرون خپـــــره پکښـــــې د مـــــرګ وه اوازه اختـــــره

پـــه ســـترګو ســـترګو کـــي مئینـــو کـــړې خبـــري شـــروع
مـــا او تـــا هـــم ســـوو ســـره پـــوه پـــه رمـــازه اختـــره

تـــه خـــو یـــوازي راغلـــې نـــه ښـــکاري جانـــان درســـره
لا مـــي زخمونـــه د زړګـــي ســـو لـــه تـــازه اختـــره

پـــردېس پـــه مـــړ ســـي کـــه بـــه مـــوړ ســـي پـــه وصـــال د اشـــنا
پـــــه خـــــو ب یـــــې ولیـــــدل روانـــــه جنـــــازه اختـــــره

۱۳۸۵
لوی اختر

# اند ېښنه

ډېر عمر خوري ستا جدايي کې چې يو کال تير ېږي
د سترګو رپ کې ساعتونه د وصال تير ېږي

د دُنيا هري رنګينۍ له ياده و ايستمه
پسرلی هم لکه جانان داسې په خيال تير ېږي

زړګيه ما درته ويل چې بې وفا دی اشنا
پر وفا دارو خو سړی تر سرو او مال تير ېږي

د ښايستو باغچو نه اوس بوی د بارو تو راوړي
چې په کنډو کنډو وطن کې مې شمال تير ېږي

يم ليونی په لار کې ناست پېغور په بيه اخلم
راکه خولګۍ خير دی که ټوله کليوال تير ېږي

د پردېس يار په يارانه کې نوی نا زګډوي
چې کله راسي مخ ته ونيسي دستمال تير ېږي

۱۳۸۵\۱۲\۱۲

# اقرار

مينـــــي دي دومـــــره کــــړم مجبــــور درځمـــه
نـــــن بـــــه دي کلـــــي تـــــه ضــــرور درځمـــه

ســـــتا د ښـــــو غشــــو ښـــــکاره کـــــړه مينــــه
د خپــــــل زړګـــــي پــــــه وينــــو ســــور درځمــــه

څــــوک چـــــي وي روغ کـــــړي د رنځــــور پوښــــتنه
زه دي پوښـــــتني تـــــه رنځــــــور درځمــــــه

کـــه دي د ســـترګـــو جنـــګ کـــي ســـر هـــم وخـــورم
يمـــــه پښــــــتون لکــــــه تربــــــور درځمــــــه

مـــا ويـــــل د حُســـــن تـــا بعـــدار بـــه نـــه ســـم
خـــــاوري ايـــــرې مــــــي ســــــو غـــــرور درځمــــه

بـــــس دی نــــــو رغيـــــر د پخلاينــــــې راکـــــه
اشــــنا دا يــــو ســــوال کــــه منظــــور درځمــــه

پـــــردېس کــــه مــــړ ســــوم د اشــــنا د لاســــه
مرګـــه ســـتا نـــوم بـــه کـــړم مشــــهور درځمــــه

۱۳۸۴\۱۱\۹

# بګړۍ

وخت چې زموږ د بګړۍ ولونو ته کاږه کتلي
موږ همېشه داسي وختونو ته کاږه کتلي

افغانان هيڅ د غلامۍ ژوند قبلولای نه سي
زموږ لاسونو ځنځيرونو ته کاږه کتلي

ای د خزان استا زې مه کوه ارمان به وکې
ولې دي دې ښايسته ګلونو ته کاږه کتلې

که درته يا د وي ټول جهان کي به وه دا خبره
چي ميوندۍ پردو فوځونو ته کاږه کتلي

د سترګو کښل يې ناروا کار نه دی مه يې پربږدئ
چا چي د دغه وطن غرونو ته کاږه کتلي

د کرکي ډک زړه ته دي وايه پردېس داسي نه دی
تا يې سپيځلو ارمانو نو ته کاږه کتلي

۱۳۸۵\۱۱\۱۵

# ګُمان

تــه چــي راځــې مــا بــه وي خپلــه يــاره ځــان وژلــی
خلـــک بـــه وايـــي دی غمونـــو د هجـــران وژلـــی

زمـــا بـــاور د ډېـــر کوښـــښ وروســـته ناکـــام وختـــی
احســـاس د مينـــي مـــي پـــه زړه کـــي ســـتا ګُمـــان وژلـــی

زمـــوږ او خنـــدا تـــرمنځ بيـــا ځـــومره فاصـــلې پيـــدا ســـوې
بيـــا د پرديـــو جنـــګ زمـــوږ د کلـــي ځـــوان وژلـــی

د ليلـــی غمـــه د مجنـــون د مـــرګ دعـــوه مـــه کـــوه
هغـــه د دوو ســـترګو د بيـــا ليـــدو ارمـــان وژلـــی

د ګـــل پـــر شـــونډو مـــي خنـــدا ســـمه ليـــدلې نـــه وه
پردېســـه اوس چـــي ورتـــه ګورمـــه خـــزان وژلـــی

۱۳۸۲\۱۰\۱۵

# پردېس

رنګ تــه يــې وګـوره لکــه مــړی دی
کــوم بـې رحمــه زړه ورڅخــه وړی دی

وخـت کـې د وصـال ګونـګ سـي هـيڅ نـه وايـي
يـار يـې څـه جـا دو وربانـدي کـړی دی

خـود بـه وي تـر هـر چـا زور يـدلی ډېـر
دا د مينــه نــاک جهــان وګـــړی دی

لاره يـې يـوه زړه تـه پيـدا نـه کـړه
ځکــه خـو سـکون نـه لـري سـتړی دی

خلکـو نـور تـر مينـي کـړئ قربـان پـردېس
دغـــه ده چـــا ړه او دغــــه پــــړی دی

۱۳۸۲\۱۲\۳۰

# ژوند

هـــم مـــي زړه هـــم مـــي ځيګـــر دی هـــم مـــي ځـــان دی
هـــم ښايســـته دی هـــم دلبـــر دی هـــم جانـــان دی

هـــم حيـــا کـــړي هـــم وفـــا کـــړي هـــم خنـــدا کـــړي
هـــم ميلمـــه هـــم معتبـــر دی هـــم ميـــز بـــان دی

هـــم پـــو هيږي هـــم بلبـــږي هـــم زو ربـــږي
هـــم غوصـــه هـــم مـــرور دی هـــم پښـــيمان دی

هـــم ســـکون دی هـــم ژونـــدون دی هـــم بېلتـــون دی
هـــم چينـــه هـــم مـــازديګر دی هـــم ارمـــان دی

هـــم حسِـــين دی هـــم شـــيرين دی هـــم غمګـــين دی
هـــم ليمَـــه هـــم مـــي نظـــر دی هـــم نـــا دان دی

هـــم يـــې يـــار هـــم نـــا قـــرار هـــم انتظـــار يـــم
هـــم ســـاده هـــم نـــا خبـــردی هـــم حيـــران دی

هـــم ســـفر دی هـــم خطـــر هـــم دلاور دی
هـــم ځپـــه هـــم ســـمندر دی هـــم طوفـــان دی

۱۳۸۵\۱۱\۲۰

# بانه

څــومره زور دي يـــاره تـــورو ســـترګو او بڼـــو كـــي دی
ژونــد مــي نــه پــوهيږي چــي پــه كومــو مرحلــو كــي دی

تــا د خدايــه غــوارم خــو لــه تــا نــه هــيڅ شــی نــه غــوارم
داســـي يـــو عـــادت خـــو همېشـــه پـــه ليونـــو كـــي دی

وچـــي د موســـم شـــونډي دي نـــه كـــوي خنـــدا راتـــه
ګـــل مـــي د ارمـــان رانـــه ورک ســـوی پـــه اغـــزو كـــي دی

اوس يـــې د جفـــا پـــه كـــاروانو نـــو كـــي را وليـــږه
هغـــه زړه چـــي وړی دي د ســـترګو پـــه لاســـو كـــي دی

دا څـــوک درتـــه وايـــې چـــي پـــردېس د يـــاده و ايســـتې
هـر ځـای كـي چـي اوسـم سـتا تصـوير مـي پـه ليمـو كـي دی

۱۳۸۲\۱\۱۰

# نصیب

پــر زړه مــي هــر یــو غــم مئــین دی چاتــه څــه ووایــم
زمـــا جانـــا ن زمـــا دښـــمن دی چاتـــه څـــه ووایـــم

د ژونــد خــوږو کــي مــي ترخــه ګــډوي څــو ک دی هغــه؟
زړه مــي پــر تــا بانــدي شــک مــن دی چاتــه څــه ووایــم

یــا ر چــي روان ســو زمــا ژبــه هــم ســلګو بنــده کــړه
اوس یــې خــالي ځــای د دیــدن دی چاتــه څــه ووایــم

مینـــي ادرس د خوشـــحالۍ دي وو غلـــط راکـــړی
د غـــم کوڅـــه د غـــم وطـــن دی چاتـــه څـــه ووایـــم

پـــردېس زړګـــي تـــه مـــي راغلـــی د ســـندرو کـــاروان
د اشـــنا خـــط راغلـــی نـــن دی چاتـــه څـــه و وایـــم

۱۳۸۲\۲\۹

# زندان

د صبر په زندان کې ځنځیرونه ماتوم
د مینې په زور ځینې رواجونه ماتوم

که شونډو دي په تلو کې د راتلو وعدې کولې
خو سترګو دي ویله چې لفظونه ماتوم

ګل نه شکومه دومره دي نیت ولې پر ما بد دی
اغزیه یوه ورځ به دي لاسونه ماتوم

کمزوری مې ونه ګڼې د مینې په دُنیا کې
چې ستا خوشحالیدو ته قسمونه ماتوم

د زړه د اُمید لاس کې زما دغه شراب نه دي
پردېس یې ځکه نه چښم جامونه ماتوم

۱۳۸۵\۱۱\۱۰

# ګیله مني سترګي

پرېبږده چې زړه مې سي د زور څخه خبر د سترګو
چې ستا د سترګو نه مې نه اوړي نظر د سترګو

که د هجران د شپو نه ځان ساتې او غم نه غواړې
خلکو ونه کړې ننداره په ما زدیګر د سترګو

یو شېبه مې ستا تصویر د سترګو ونه ایستی
لایې ګمان دی لا دي ونه سو باور د سترګو

ژبه ګونګې زړه وارخطا کړي ورکړي رنګ ته تغیر
منم منم منم منم هنر د سترګو

غرق سو تباه سو د خپل تولو ارمانو نو سره
پردېس لاهو کی په څپو کي سمندر د سترګو

۱۳۸۲\۳\۱۷

# مُهلت

بېلتونـــه يـــار مـــي راپرېـــږدې کـــه دي لا وس پاتـــه دی
راځـــه راځـــه د ارمـــانو نـــو مـــي هـــوس پاتـــه دی

چـــي بيـا مـو کلـي تـه راځـې ځـان سـره مـرګ راولـه
اوس خـو ژونـدی يـم پـه وجـود کـي مـي نفـس پاتـه دی

تـا پـر هـر کـور بانـدي وېشـلي دي ويرجنـي سـاندي
ځکـه مـي ګـران وطـن تـر ټـولي دُنيـا پـس پاتـه دی

چـي نـه دي و ژړوی نـه دي ځنـي هيـر کـی اشـنا
پـه دې دُنيـا کـي لا زمـا غونـدي يـو کـس پاتـه دی

بلـه رنګينـه شـپه بـه خدايـه پـر مـا کلـه راځـي
د پـردېس يـار سـره خوبونـو کـي مجلـس پاتـه دی

۱۳۸۲\۳\۳۰

# بهانه

عبث دي یاره پر سرو شونډو بهانه پیدا کړه
مه راځه خیر دی ما د صبر خزانه پیدا کړه

پروا مي نسته که په مینه کي مي خپل پردي سول
د ژوند ملګري مي غمونه بیګانه پیدا کړه

دا به وي ستا د هیریدو زېری زما لپاره
دا فاصله چي مو تر منځه ښېلتانه پیدا کړه

ما ملامت و ګڼه هلته بې وفا دلبره
که خپل ټټګی کي دي سپیڅلې نښانه پیدا کړه

د ناز ځپیره دي پر مخ ورکړه چي تلې پردېسه
د اشنا اوښکو ولي لار د ګریوانه پیدا کړه

۱۳۸۲\۴\۲۸

# نن ما زديګر

داسي خوند کوې جانانه د خپل کلي په کوڅو کي
لکه باغ کي چي ګلاب وي لکه مالګه په خوړو کي

دا د هوا او نه ځواب دي خوړ او تريخ سره ګډ بېږي
لکه مينه کي دردونه لکه ژوند ستا په وعدو کي

د ګمان لار مي کړه بنده د هر چا نه مي راپټ کړې
لکه راز د زړه په کور کي لکه اوښکه په ليمو کي

ياراني مي ډېر مشهور کړې تا چي هير کړم تاواني سوې
لکه شمع بليدلې لکه سيوری سوې تيارو کي

د پردېس د شعر بيتونو زما نوم داسي ساتلی
لکه ونه په اوبو کي لکه زر په خزانو کي

۱۳۸۲\۴\۲۲

# دُعا

مــورِ څــه ګنــاه کــړې ده خلــک مــو پــه څــه بېلــوي
ډېــر ظالمــان ســته پــه دُنیــا کــې ځــان او زړه بېلــوي

د زهــرو ډکــې هغــه خــولې کــړې ای د زړو مالکــه
پــه څــو نومونــو یــو د بلــه پښــتانه بېلــوي

زمــورِ د اوښــکو شــبنمونو تــې نیــولې لاري
رنــګ د ګلونــو نــه بــد رنګــه زمانــه بېلــوي

زړګــی مــې خــوري داځــل خــو ټولــو اتفــاق کــړی دی
تــر خپلــه وســه هــر یــو غــم ځنــې ټوټــه بېلــوي

چــا د اختــر او د نکریــزو تــر مــنځ ویــر کښېښــوی
څــوک د ژړې مــازدیګري نــه ننــداره بېلــوي

پــردېس بــه څــوک د لیونیــو د قطــاره باســې
چــې خپــل لاســونه یــې تنهــې د ګریوانــه بېلــوي

۱۳۸۲\۴\۱۱

# سلامونه

ارمان یمه لیږلي مې منزل ته سلامونه
ستا مخ ته سلامونه ستا کاکل ته سلامونه

پر هر مې د زړګي چې جوړېدو ته نږدې سوی
دردونو یې ویلي دي درمل ته سلامونه

نسیمه که یې وړې نو د وږمو سره یې مل که
د یار د قدم خاورو د یار پل ته سلامونه

د اوښکو قلمونه مې د مخ پر ژړه پاڼه
اغزیو ته ګیله لیکي او ګل ته سلامونه

بې میني ژوند نیمګړی دی خو داسي مینه هم نه
روان چې پکښي نه وي یو او بل ته سلامونه

چې ستا د لوري راغله نو خواږه به ولي نه وي
سپارلي مې پردېسه د زړه تل ته سلامونه

۱۳۸۲\۴\۳۰

# ناخوالي

لکه په زړه د یو مئین چي ښېلتون لوبي وکړي
ملګرو داسي مي جګړې په ژوندون لوبي وکړي

نن یې کورونو ته تړوتې د وجود ورسیدې
دلته د کلي ماشومانو پرون لوبي وکړي

د پر مختګ ارمان مي زړه کي په سلګو وژړل
په ګران وطن کي مي رشوت په قانون لوبي وکړي

څوک راته وایي په دُنیا کي د ژوند حق نلري
چا کړله ختم چا په نوم د پښتون لوبي وکړي

دا زورور که شرمیدلای دلته نه راتلله
په دغه زور یې زموږ سپیڅلي پاڅون لوبي وکړي

د پردېس غم د وطن غم د خلکو غم کومه
ډېرو غمونو مي د زړه په سکون لوبي وکړي

۱۳۸۲\۸\۲۲

# بغاوت

غوټۍ د ناز په خوب بیده ده خزان هیڅ نه مني
د میني ژوند زړه ته فایده ده تاوان هیڅ نه مني

کوښښ کوي چي یو د بل څخه یي بېل وساتي
دا زمانه څومره ساده ده یاران هیڅ نه مني

زړه ته مي ووایه چي دا لیونتوب ولي کوي
تا د راتلو کړې وعده ده هجران هیڅ نه مني

د دغو سرو لمبو په منځ کي خدای ساتلي یو موږ
زما خو دغه عقیده ده ګُمان هیڅ نه مني

نوره مي ستا د دیدنونو طمع نه ده کړې
ستا سو د کلي لار اوږده ده ناتوان هیڅ نه مني

په خوب کي وینم مرګي وړی ارمانجن پردېس دی
تهي په اوښکو مي لنده ده ګریوان هیڅ نه مني

۱۳۸۲\۸\۲۰

# د ولس ږغ

زه افغـــان ولـــس يـــم چـــا مـــي قتـــل مځـــوَر کړلـــه
چـــا رانـــه د سُـــولي پيغامونـــه مـــرور کړلـــه

خـــدای خبـــر زمـــا حلاليـــدل څـــومره ثـــواب ګڼـــي
ټولـــو قـــاتلانو يـــو او بـــل ســـره خبـــر کړلـــه

نـوم د قهرمـان غـواړي جګـړه کـي چـي خپـل وروړ وژنـي
داســـي مشـــرانو جهالـــت تـــه وده ور کړلـــه

څـوک مـي ټـول جهـان تـه د غـلام پـه رنـګ ور پيژنـي
چـا پـه وينـو سـره راتـه کوڅـه د جنـګ سـنګر کړلـه

بيـا بـه يـو دوران تـه افغـانی غـرور ژونـدی سـاتم
څـو ځلـه مـي نـور د دوي عقلونـه ور پـر سـر کړلـه

دوي وايـــي دا ګنـــاه نـــه ده پردېســـه ګنـــاه څنګـــه وي
ســتا پــه شــان يــې ډېــر پــه بــل وطــن کــي در پــه در کړلــه

۱۳۸۶\۷\۲۱

# جهالت

پښېمانې به یوه ورځ خپلو څېرو کې سره وینو
د غم اوښکې به د سترګو کنارو کې سره وینو

رښا مه وژنه نا ترسه تاواني به سو بېحده
بیا خپل دوست او دښمن څنګه په تیارو کې سره وینو

اوس مو لاري بېلي بېلي د اورونو خوا ته ولاړې
نه پوهېږو چي سوځېږو په ایرو کې سره وینو

اتفاق مو په اختر او پسرلي کې معلوم نه سو
همېشه د کلي څنګ ته هدیرو کې سره وینو

پردېس غواړي چي نور یو د بل په زړو نو کي ځای جوړ کوو
جهالت دی چي د جنګ په سنګرو کې سره وینو

۱۳۸۲\۱۰\۱۲

# اجازه

پسرليه دا مي زړه دی پرهرونه ورسره دي
ستا قدم ته يي ايښدم دا ارمانونه ورسره دي

پر خندا باندي بنديز دی مرور درڅخه نه يم
يو مي غم سرته ولاړ دی نور غمونه ورسره دي

پام کوه زخمي دي نه کړي د دې خلکو دا رواج دی
پېرزوينه د مرمۍ کړي ټوپکونه ورسره دي

پټ په غوږ کي درته وايم اشنا زېری مي درباندي
پسرلي مينه راوړې سره ګلونه ورسره دي

ورته ګوره ديار مخ مي لکه ګل چي غوړيدلی
دا زما د خوارو اوښکو شبنمونه ورسره دي

اجازه ده پسرليه د پردېس کيسه شروع کړم ؟
يار يې ښکلی دی افسوس چي ستمونه ورسره دي

۱۳۸۲\۱۰\۲۷
لښکرګاه

# شپه

د رڼا کلي ته لار نه معلومېږي
شپه اوږده ده سپين سهار نه معلومېږي

همېشه د بل ارمان پوره کوو چي
د ورور مرګ راته بد کار نه معلومېږي

سور ګلاب ته سترګي څنګه واړو مه
سرو لمبو کي پټ دی ښار نه معلومېږي

زموږ حال تر دي بدتر ښه دی چي پوه سو
راته هيڅ يار او اغيار نه معلومېږي

د وطن پر آزادۍ مئين وو ځکه
پردې خاوره يې مزار نه معلومېږي

د دوستۍ طمعه يي کړې له دُښمن نه
ليونی پردېس هوښيار نه معلومېږي

۱۳۸۷\۲\۲۱
هلمند لښکرګاه

# تندک

غــــم مــــو دی ملګــــری د خنــــدا آزار وهلــــي يــــو
مــــوږ د اتحــــاد او د وفــــا آزار وهلــــي يــــو

چښــو يــو د بــل وينــي غــم ښــادۍ کــي هــم يو ځــای کښــېنو
دا مــو بــد بختــي ده کــه د چــا آزار وهلــي يــو

ښــکلی لکــه ګــل ځــوان مــو پــر خــاورو پــېــرزو کــړی دی
مــوږ د ژوندانــه د نــاز ادا آزار وهلــي يــو

مــوږ د ماشــومانو پــه ذهنونــو کي جنــګ وکــړی
نــن خــو درپــه در يــو د ســبا آزار وهلــي يــو

بلــي ســري لمبــې د انتقــام ســاتو پــه زړونــو کــي
مينــي ملامــت يــو ټولــه ســتا آزار وهلــي يــو

خــود بــه تندکوُنــه خــورو پردېســه چــي مــزل کــوو
جــوړي مــو تيــاري کــړې د رڼــا آزار وهلــي يــو

۱۳۸۷\۴\۱۴
هلمند لښکرګاه

# سپین میدان

ژوند سو څو مره ګران زړګیه اور واخله
خاوري سو ارمان زړګیه اور واخله

پام کړه پرهرونه دي خفه نه کړي
نه لري درمان زړګیه اور واخله

داسي په اسانه دیدن چیري دی
رابه سي جانان زړګیه اور وا خله

زما په خوله به صبروې منمه دي
اوس یمه پښیمان زړګیه اور واخله

ډېري دي د حُسن لمبي خوښي وي
نن پر سپین میدان زړګیه اور واخله

نور د پردېس غم ته زاري مه کوه
څیري که ګریوان زړګیه اور واخله

۱۳۸۷\۱۱\۱۸
هلمند

# لمبې

د زړونـــــــو ارمانونـــــــه د مئینـــــــو ارمانونـــــــه
دې کلـــي کـــي ســـو ځیږي پـــه اورونـــو ارمانونـــه

د بـــم پـــه ږغ ویښ ســـوي نـــازولي ماشـــومان دي
وړي ځـــان ســـره لحد تـــه د خوبونـــو ارمانونـــه

وګـــړو د دُنیـــا زمـــوږ نـــا پوهي تـــه دُعـــا وکـــړئ
پـــوره مـــو کړئ پخپـــل منځـــي جنګونـــو ارمانونـــه

پـــه طمعـــه د وربـــل دي خـــو پـــر پـــاڼو یـــي اور بـــل دی
منـــزل تـــه نـــه رســـیږي د ګلونـــو ارمانونـــه

پردېســـه خوشـــحالي دي پنـــا ســـوي ده لـــه ســـترګو
بـــدل دي کـــړه حـــالاتو پـــه غمونـــو ارمانونـــه

۱۳۸۷\۳\۱۱

# تحفه

جنګونـــه مـــي پـــر لـــور د ګـــران وطـــن مـــه راليـــږه
د اور د بليــــــدلو ارمــــــانجن مــــــه راليــــــږه

يــو ځــوان د زکنـدن پـه حـال کـي مـور تـه داسـي وايـي
مـــزار تـــه مـــي بچـــی څلـــور کلـــن مـــه راليـــږه

ګيلـــه بـــه زه د خپـــل نصـــيبه نـــه کـــوم نـــو تـــه هـــم
جهـــاد لـــه خپـــل طرفـــه ګيلـــه مـــن مـــه راليـــږه

زمـــا پـــه غـــم شـــريکه ســـتا د بـــم پـــه پېرزوينـــه
ژونـــدي تـــر خـــاورو لانـــدي يـــو کفـــن مـــه راليـــږه

کـــه خپـــل د جفـــا نښـــه پټـــوې پـــه چاپلوســـيو
ګريـــوان تـــه د پـــردېس خـــو تـــار او ســـتن مـــه راليـــږه

۱۳۸۷\۱۲\۲۵

هلمند څپاند سيند مشاعره

# سلګۍ

جرګـــه مـــي کـــړه د يـــار پخـــلا کيـــدو پســـې روانـــه
ســـلګو کـــي مـــي دُعـــا ســـوه قبليـــدو پســـې روانـــه

زمـــا د اســـو يلـــو پـــه برکـــت دي حُســـن زيـــات ســـو
ورېمـــه وي تـــل د ګـــل پـــه غوړيـــدو پســـې روانـــه

تـــر څـــو بـــه دي څـــارم جانانـــه لاري د راتللـــو
وعـــده دي ســـوه وعـــدو ســـره وعـــدو پســـې روانـــه

اشـــنا لکـــه د جنـــګ تـــوره بـــلا چـــي خلـــک وژنـــي
ســـوه داســـي ســـتا جفـــا مـــي اُميـــدو پســـې روانـــه

مقصـد يـې نـه وو دا چـي زمـا پـر مـخ وليکـي نـوم سـتا
دا اوښـــکه وه د ســـترګو ســـتا ليـــدو پســـې روانـــه

پردېســـه چـــي ژونـــدی يـــې بـــس د مينـــې احتـــرام کـــړه
دُنيـــا کـــه ده هـــر څـــومره پـــه فايـــدو پســـې روانـــه

۱۳۸۵\۹\۲۴

# انتخاب

نوري سلګۍ د ارمانونو په لاس مه ورکوه
هر وعده دي د کلونو په لاس مه ورکوه

قسمته ستا سره چي هر څه دي قبول مي دي ټول
عقل نادان مي د سوچونو په لاس مه ورکوه
داسي بې يوسي لکه تا چي رانه زړه وړی دی
ښکلې ځواني دي د وختونو په لاس مه ورکوه
چي پس له مرګه دي ښه ځير راته کتلي نه وي
ما د څلورو ديوالونو په لاس مه ورکوه
لږ فکر وکړه که دوران دي تير سو څه به کوې ؟
نرۍ خندا دي د نازونو په لاس مه ورکوه
د ليوني زړه زو ريدو ته مي بل کار وګوره
خپل تصويرونه د خوبونو په لاس مه ورکوه
د دې لپاره چي خپل زور او تاثير ونه بايلي
د حُسن واک د سينګارونو په لاس مه ورکوه
د اُميدونو جنازې چي تر سهاره باسي
تريخ انتظار د ماښامونو په لاس مه ورکوه

پردېسه داسي يار پيدا که چي په خوی ښايسته وي
دا انتخاب دي د رنګونو په لاس مه ورکوه

۱۳۸۲\۴\۱۰

# خوږه شېبه

د وصــال پــه بــاچهي کــي غــم د ځــان کــوي غمونــه
د ديــدن د خــولې نــن اورم د بېلتــون د مــرګ حکمونــه

خاموشــۍ يــې بنســټ ايښــی دا ځــل ټينګــه يارانــه ده
شــور او شــر پــه مــنځ کــي نســته خفګــان کــړي قســمونه
تلوســه مــي رســوايي تــه پــټ پــه غــوږ کــي داســي وايــي
راځــه نــوم د يــار غــزل کــه راځــه مــات کــه رواجونــه
د بــاور لاس کــي خنجــر دی وسواســې يــې دي وژلــي
زړه مــــي بيــــا کړلــــه پــــه غــــاړه د رازونــــو امېلونــــه
مايوســــۍ رخصــــت اخســــتی اســــويلي ورســــره ولاړل
غلــي غلــي راتــه خانــدي پــه ليمــوکي دا وختونــه
پښــــتنه وعــــده راغلــــې د اقــــرار اســــتازی ګرځــــي
پــر انکــار خــاوري انبــار ســوي ســترګو وکړلــه ســتونه
ګيلــه مــن شــوګير مــي غــواړي بيــا د ځــان ســره ملګــری
څنګــه ورســمه ځــولۍ چــي غــوړوي راتــه خوبونــه
فريــاد ورک انتظــار ختــم خيــال پــرواز کــړي هــري خــوا تــه
مُســکا شــونډو ميلمنــه کــړه ژونــد هيــر کــړي دي ويرونــه

ســـــتم و غوښـــــته بخښـــــنه د پـــــردېس د حوصـــــلې نـــــه
ورځ تــــر بلــــي نــــرم کيــــږي د اشــــنا ټينــــګ عادتونــــه

۱۳۸۲\۵\۲

# جفا

چي د همزولو په ټولۍ کي تر چا پاته نه یم
ولي پر هیڅ باندي حساب جانانه تا ته نه یم

یو ورځ به ستا سره هم وسي جفاګاني ډېري
یوازي زه خداي پیدا کړی ستا جفا ته نه یم
ما په دُنیا کي داسي ښکلي سترګي ونه لیدي
ځکه وتلی د خپل کلي نه صحرا ته نه یم
جانانه ستا دا د ځوانۍ غرور به سي پښیمانه
چي سمه خاوري بیا محتاج به دي خندا ته نه یم
هر وخت یې وینم په خوبونو شکر خدایه
لا هم بې برخي د اشنا د ملاقاته نه یم
ظلم ستم مي پر ماشوم زړګي هر څومره وکه
مینه کوم خو ورسپارلی دي سزا ته نه یم
د بلبل چیغي او د ګل خاموش ژوندون چي ګورم
دا یو رواج ګڼم حیران خپلي ژړا ته نه یم

پردېس ارمان که مي اصلي منزل ته ورسیدی
باور لرم اوزګار به ستا د مخ ښکلا ته نه یم

۱۳۸۲\۳\۲۱

# آخیرولي ؟

زړه ته مي په قهر زمانه ګوري
رحم ولي زما پر طرف نه ګوري

دا د آزادۍ په نوم غلام ژوندون
وار په وار مي لاس ته زولانه ګوري
دې وخت کي مي زور از مایل کېږي نه
وژني به مي بل خو پښتانه ګوري
ای زما وطنه څوک ماړه سوه نور
څوک دې لا ګوټ ګوټ کي خزانه ګوري
ووتې له ذهنه د غیرت کیسې
خود به دي وربل ته بیګانه ګوري
بده ښکاري لاس کي د یتیم ډوډۍ
هر څوک ورته نوې بهانه ګوري
مه ګوره غلیمه اوس په سپک نظر
سرته به دي بیا کاڼي درانه ګوري

وینه چي سي زړونو کي بیده جذبه
سترګي د پردېس هغه صحنه ګوري

۱۳۸۴\۵\۳۰

# قافلې

جانان چې تلی زه په خندا کلي کې پاته سومه
د ماشوم زړه سره تنها کلي کې پاته سومه

د رخصتۍ غېږ مې په مينه ورکړه ښکلي يار ته
ما ويل خوب دی خو رښتيا کلي کې پاته سومه
د سترګو اوښکو سره يو ځای د زړه غوښې خورمه
دا يې ثمر سو د وفا کلي کې پاته سومه
بېلتونه زړه را باندې يخ که خو چې بيا رانه سې
که چيري يو ځل د اشنا کلي کې پاته سومه
د جدايي هره شېبه راته يو کال ښکاريږي
تيره شپه ويښ وم تر سبا کلي کې پاته سومه
نه ليونی سوم نه خو مړ سوم دا دی روغ ګرځمه
په زړګي سخت لکه سزا کلي کې پاته سومه

هر وخت مې زړه ته راروانې وي د غم قافلې
پردېس چې سوم درنه جدا کلي کې پاته سوم

۱۳۸۴\۷\۲۸

# پېغور

د هـــر چـــا چـــي دوه يـــاران وي دا بـــې حـــال وي
همېشـــــه بــــه يـــو خفـــه او بـــــل خوشـــحال وي

پــــه يـــــوه زړه کـــي بـــه يـــو جانـــان ســـاتمه
کــــه تهمـــت وي کــــه پېغـــور وي کــــه جنجـــال وي
بختـــــور دی چـــــي پــــر هغــــه چـــا مئـــين وي
چــــي يـــــې زړه دغســــي ســــپين لکـــــه جمـــال وي
لـــــړه مينـــــه لــــړ وفــــا لــــړ خنــــدا وکـــــه
لـــــړ پيســــــې را دا ځــــواب بــــه د دې ســــوال وي
درواغجــــن بــــه دلتـــــه ډېــــري مــــزې وکـــــړي
رښــــتيا ګويـــــه تـــــه بــــه جــــوړ د فکـــــر تـــال وي
پـــــه سُـــــورکو شــــونډو خنـــــدا دي زلزلـــــه ده
چـــي ډېـــر خانـــدې زمـــا مـــرګ تـــه بـــه دي خيـــال وي
ســـتا د ســـترګو پـــه رڼـــا بـــې را پيـــدا کـــړو
کــــه دي ورک د غونـــډې زنـــي شـــينکی خـــال وي

د زړګـــي نـــه بـــه دي ډېـــر غمونـــه کـــم کـــي
خوشـــحال اوســـه چـــي پـــردېس دي کليـــوال وي

۱۳۸۵\۹\۵

# ستا یاد

سترګي دي زما نه جوړولای سي د غرو لیوني
زما نه مخکي دي بل څوک وو په کتو لیوني

تر هغه وروسته یې سي مینه د لیلی پر سترګو
چه کله و ویني ستا سترګي په خوبو لیوني
د سهار باده تر سلام وروسته اشنا ته وایه
سر پر زنګون دي یادوي په نیمو شپو لیوني
د زړګي مینه مي یوازي د ښکلا سره ده
په ښکلي مخ پسي به ګرځمه تر څو لیوني
ته چي زما نه ولاړې زه یم دلته چاته پاته
په تا پسي سوم سراسر په شو ګیرو لیوني
د ژوند شپې ورځي تیرومه ستا د یاد زندان کي
تر ما بېغمه ښکاري ډېر د زولنو لیوني
زه د نیمګړي دُنیاګۍ تماشې نه پیژنم
زه کړم د هغه نازولي یار غمو لیوني
پر حق مئین دلته په کاڼو باندي ولي هر څوک
کلي کي نه لري هیڅ ځای د اوسېدو لیوني

بس دی دُعا ته ضرورت نسته جوړېږي کله
پردېس په غم کي د جانان سو د کلو لیوني

۱۳۸۵\۲\۳

# ستم

زمـــوږ ژبــي بــه د ښـــکلو پـــه صـــفت کلـــه مړېـــږي
دا ښـــکلي پـــه غـــرور او پـــه نفـــرت کلـــه مړېـــږي

غمجنـــي دُنیـــاګۍ کـــي پـــه پیســـو حُســـن خـــرڅ ســـوی
ښـــکلا خلـــک بـــه ســـتا پـــه تجـــارت کلـــه مړېـــږي
پـــه یـــو نظـــر کتـــو مـــي ژړوې تـــر ډېـــره وختـــه
خونکـــاري ســـترګي ســـتا مـــي پـــه زحمـــت کلـــه مړېـــږي
مـــا هیـــره کـــړه خنـــدا چـــي د جانـــان نـــه اقـــرار هیـــر ســـو
انکـــار انکـــار انکـــار پـــه دې عـــادت کلـــه مړېـــږي
چـــي خپلـــه دي راولیـــږي زمـــوږ د کلـــي خـــوا تـــه
دیـــدن بانـــدي دي خلـــک د مالـــت کلـــه مړېـــږي
کـــه ژونـــد یـــوه ثانیـــه وي خدایـــه خوښـــه مـــي ښـــکلا ده
ښـــکلا ســـره مـــي زړه پـــه محبـــت کلـــه مړېـــږي
زمـــا هغـــه وږي ســـترګي چـــي ټـــول عمـــر انتظـــار وې
اوس تاتـــه پـــه کتـــو پـــه یـــو ســـاعت کلـــه مړېـــږي
خوبونـــه زنـــداني مـــي راپرېـــږدي خـــو اوښـــکي غـــواړي
غمونـــه دي جانانـــه پـــه رشـــوت کلـــه مړېـــږي

پردېســـه د زړه وینـــو بانـــدي هـــر یـــو غـــم مـــوږ ســـوی
پـــه خپـــل وینـــا ویـــونکي د تهمـــت کلـــه مړېـــږي

۱۳۸۵\۱۲\۱۱

# د فکر تال

تــــو بــــه څـــومره وفـــا کـــوي یادونــــه د اشــــنا
روان مــــي دي دژونــــد ســــره غمونــــه د اشــــنا

ژونــــدون ذره ذره دی او دُنیـــا څنګــــه ســــپېره ســــوه
چــــه نســــته پکښــــې ښــــکلي دیدنونــــه د اشــــنا
ظــــالمي زمــــانې یــــې کــــړه خنــــدا را څخــــه پټــــه
قبــــول مــــي پــــر لیمــــو وه قدمونــــه د اشــــنا
لــــوګی لــــوګی یــــې زلفــــي وې لمبــــه د مــــخ پــــه شــــان وه
بیــــا شــــمعي راتــــه وښــــوول رنګونــــه د اشــــنا
بیــــا چیغــــو د ببلتــــو ن کړمــــه لــــه خوبــــه را بیــــداره
پــــه ســــترګو کــــي مــــي مــــات ســــول تصــــویرونه د اشــــنا
ای غمــــه زه پښــــتو ن یــــم زه یــــې نــــه ســــم هیــــرولای
تــــر مرګــــه بــــه کومــــه صــــفتونه د اشــــنا

الله بــــه د ببلتــــون جنــــازه وباســــي پردېســــه
کــــه پورتــــه پــــه دُعــــا ســــوه ســــره لاســــونه د اشــــنا

۱۳۸۴\۱۰\۲۲

# د زړه کور

نــه زمــا د زړه نــه وزي نــه بــه خپــل زړه کــي ځــای را کــي
واورئ ای د دُنیــا خلکــو یــار بــه زمــا ژونــدون تبــاه کــي

یـو جانـان یـو مـي ارمـان دی یـو مـي تـار پـه تـار ګریـوان دی
یــو مــي زړه یــو پکښــې یــار دی بــل څــه نــه لــرم دُنیــا کــي
غـــواړي زړه نـــه ورکـــوي زړه دا عجیبـــه کیســـه نـــه ده ؟
ښـــکلو تـــول تـــاواني کـــړي یـــو والله پـــه دې ســـودا کـــي
توبـــه نـــه ځنـــي کـــوم خـــو د قســـم نـــه مـــي قســـم دی
بیـا بـه دا سـي قسـم نـه کـړم چـي وفـا سـته پـه اشـنا کـي
نـــه ګنـــاه ده د غمـــاز نـــه د بېلتـــون نـــه د رقیـــب ده
سـتا وعـدو کـي شـوګیر مـا تـه سـر پـر سـر بهـانې پیـدا کـي
د هجـــران تـــوري تیـــارې دي یـــاره خـــدای لپـــاره راســـه
چـــي د ژونـــد لاره پیـــدا کـــړم ســـتا د ســـترګو پـــه رڼـــا کـــي
بیـا بـه پـوه سې چي تـه څـوک یې دلتـه څـومره دی سـتا قـدر
چـــي د وخـــت ســـپیره ســـیلۍ مـــي درنـــه تـــول عمـــر جـــدا کـــي
زمــا ډېــر ســپیره قســمت دی هــر وخــت تــا رانــه خفــه کــړي
ســـتا د شـــونډو نـــه مننـــه چـــي دي بیرتـــه را پخـــلا کـــي

د ګیلـــو نـــه دي قربـــان ســـم زړه د زړه بـــدل کـــي واخلـــه
نـــور بـــه نـــه ژاړې پردېســـه خپلـــي اوښـــکي دي کـــه پـــا کـــي

۱۳۸۵\۵\۱۷

# فریاد

د زړه آهونـــــه دي زمــــا هـــــيڅ اوريــــدلي نـــــه دي
څـوک چـي يـې اوري هغـه سـتا پـه شـاني ښـکلي نـه دي

چـــي څـــومره ژاړمـــه اشـــنا اوښـــکي مـــي مـــه پـــاکوه
نـــن داسـي ښــکاري چـي مـي هـيڅ درتـــه ژړلـــي نـــه دي
ښـــکلي مـــنم هـــر څـــوک بـــه ســـتا د ښـــکلا قـــدر کـــوي
بـــې مـــا پـــه غـــم دي چـــا د زړه غوښـــي خـــوړلي نـــه دي
ځکـــه پـــه دې وطـــن کـــي خلـــک ګناهکـــار ګڼـــي مـــا
هـــر چـــا تـــه غيـــرېه ورکـــوم څـــوک مـــي وژلـــي نـــه دي
زمـــا زړګيـــه هـــم يـــې وران کـــړې هـــم اوســـېږې دلتـــه
افغانســـــتانه دُښـــــمنان دي پيژنـــــدلي نـــــه دي
هســـي نـــه يـــاره دغـــه نـــور ښـــکلي خفـــه ســـي رانـــه
بـه غيـر لـه تـا مـي د بـل چـا سـترګـي سـتايلي نـه دي
را ځـئ چـي يـو ځـل د سـپيڅلي عشـق يادګـار تـازه کـوو
ډېـري مـودې وسـوې چـي څـوک دار تـه ختلـي نـه دي
کـه مـي کـړي مـړ بيـر تـه ژونـدی سـم خـو بيـا هـم جانانـه
وايـم چـي سـترګي دي ښايسـتې دي خـو قـاتلي نـه دي

خدايـه پـردېس د داســي خلکــو نــه ډېــر لــري ســاته
چـــي مينـــه نـــه پيژنـــي غـــم کـــي زنګيـــدلي نـــه دي

۱۳۸۵\۵\۱۱

# حالات بدل دي

پــانهو د تــاریخ کــې د ملالــي تــور وربــل ښــکاري
اوس افســوس د هغــه وطــن واک لاس کــي د بــل ښــکاري

کاشــکي چــي زه مــړ وای یــا مــي داســي څــوک لیــدلای نــه
وا وښــتی لــه دیــن نــه خلــک وایــي چــي پاګــل ښــکاري
چــاچي دُښــمن و ایســت د هغــه نــوم پــر خولــه نــه راځــي
چــاچي بیرتــه راوســتی هغــه راتــه اتــل ښــکاري
څــوک چــي یــې وړي ګټــه د جګــړو څخــه مــدام وایــي
دا تــوري تیــارې د وطــن برخــه د ازل ښــکاري
یــو چــي ورتــه لار ښــیې بــل هرڅــه پــه ډاډه زړه وړي
ووایــه زړګیــه تــا تــه کــوم یــو ســړی غــل ښــکاري
څــوک پکښــې د نــوي ابــادۍ نښــي لیــدلای ســي؟
مــا تــه خــو هــر څــه پــه کنډوالو بانــدي بــدل ښــکاري
مرګــه نــور مــي واخلــه چــي زه دومــره درواغجــن یمــه
مــا ویــل خــاوره زمــا ده اوس د نــورو پکښــې پــل ښــکاري
دا چــي د دســتار پــه نــوم پــر ســرمو دی دا هــیڅ نــه دی
دا مــو ولیــږي غــاړو تــه هــم دا زمــوږ قاتــل ښــکاري
بــس نــاپوه مالیــاره مــا تــه مــه کــړه د بهــار کیســې
بــاغ کــي دي نــوکر ســپیرو اغزیــو تــه ســور ګــل ښــکاري

چیغــي د افســوس چــي د پــردېس د خــولې نــه ووتــې
چــا تــه د غــم ســاندي وي او چــا تــه بــه غــزل ښــکاري
۱۳۸۵\۲\۱۸

# وچي شونډي

زړونه کلک سوه نه مري څوک د چا د غمه
کني خاوري به وای زه پخوا د غمه

چي یاري کړي د نا دان هوښیار زړګیه
خود به هیره کړي خوږه خندا د غمه
داسي ګډي وډي وایم به تر کومه
چا ته وکړم فریادونه ستا د غمه
تر خوږو خوږو خبرو دي قربان سم
کوم نن درته ترخه وینا د غمه
مرګ په خپله خوله غوښتل یوه ګناه ده
ما به هم کړي وي دا ګناه د غمه
وچي شونډي څنګه جوړي کړم خندا ته
نه یم خلاص یو شېبه اشنا د غمه
چي د کلي نه مي نه باسي صحرا ته
ګیله من به یمه خامخا د غمه

چي د ژوند غوندي وي مرګ ته مي ور پرېږدي
پردېس غواړم په دُعا وفا د غمه

۱۳۸۵\۱۱\۱۱

# ژړېدلې هیله

د دُنیـــا خلکـــو د نظـــر څخـــه ایســـتلٰی یمـــه
لکـــه د تیـــرو زمـــانو د خـــاورو ځلـــی یمـــه

د ژونـــد ســـاګاني حســـابمه ولـــي مـــرګ نـــه راځـــي
نصـــیبه څنګـــه دي غمونـــو تـــه ســـپارلی یمـــه
بېلتونـــه راســـه بـــې پـــروا یـــار مـــي د کلـــي یوســـه
چـــي دی خنـــد بړي زه پـــه اوښـــکو لمبیـــدلی یمـــه
عشـــقه نـــور لاس راڅخـــه واخلـــه څـــه دي وکـــړه پـــه مـــا
هـــم خندیـــدم هـــم رپیـــدم هـــم ژړیـــدلی یمـــه
خپلـــو ســـوالونو تـــه پـــه خپلـــه ځوابونـــه وایـــم
د خپـــل یـــار غـــم کـــي داســـي حـــال تـــه رســـیدلی یمـــه
ای لیونتوبـــه بـــې وفـــا نـــه ســـې او پـــرې مـــي نـــږدې
ډېـــر ســـوم خوشـــحاله چـــي دي ځـــان ســـره منلـــی یمـــه
عـــادت پښـــتون زړه مـــي پښـــتون زمـــا وجـــدان پښـــتون دی
څـــوک چـــي مـــي نـــه غـــواړي نـــو کلـــه ورغلـــی یمـــه
اوس مـــي پـــر غرونـــو ګرځـــوي مـــدام د ســـیوري غونـــدي
چـــي د اشـــنا لمـــر غونـــدي مـــخ تـــه دریـــدلی یمـــه

ګورتـــه بـــه یوســـمه ارمـــان دي د وصـــال جانانـــه
پـــردېس تـــه نـــه راځـــې پـــه ژونـــد کـــي پوهیـــدلی یمـــه

۱۳۸۵\۱۰\۱۱

# اوښکي

بیـــا پـــرمخ ســـوې پـــر یشـــانه زمـــا اوښـــکي
دومـــره مـــه ګڼـــه ارزانـــه زمـــا اوښـــکي

ســـتا د غـــم قـــافلې ډ ېـــري زړه تـــه راغلـــې
هرکلـــي یـــې کـــړې ســـتومانه زمـــا اوښـــکي
د خپـــل کبـــر او غـــرور نـــه بـــه لاس واخلـــې
کـــه دي ولیـــدې جانانـــه زمـــا اوښـــکي
دا چـــي ګـــل د یـــار د مـــخ ســـره ســـیالي کـــړي
ســـتا ســـیالي کـــوي بارانـــه زمـــا اوښـــکي
راتـــه لـــږ د خـــو شـــحالۍ لپـــاره پـــر ېـــږده
لا دي بـــس نـــه دي خفګانـــه زمـــا اوښـــکي
کـــه مـــي یـــار د خپـــل راتللـــو زیـــری راکـــړي
بیـــا نـــه وینـــې هجرانـــه زمـــا اوښـــکي
د دردمـــن زړګـــي دردونـــو بدرګـــه کـــړې
چـــي راغلـــي تـــر ګریوانـــه زمـــا اوښـــکي

پـــه ســـلګو ســـلګو بیـــده ســـومه پردېســـه
وچـــي ســـوې نـــه ســـوي پښـــیمانه زمـــا اوښـــکي

۱۳۸۵\۹\۱۸

# شو گير

مه ځه نور پر دغه لاره ليونتوب ته دي نږدې كړم
ای زړ گيه وفاداره ليونتوب ته دي نږدې كړم

د اشنا د ديدن وږې په شو گير باندي مو ړ نه سوې
كښېنوې مي تر سهاره ليونتوب ته دي نږدې كړم
بس دغه غمونه بس دي خوشحالۍ دركوای نه سي
لا نور څه غواړې له ياره ليونتوب ته دي نږدې كړم
په سلگونو وعدې نوري يې هم كړي و ې رانغى
پربېږده پربېږده انتظاره ليونتوب ته دي نږدې كړم
كليوال دي راخبر كه ورته كاڼي په لاس وركه
مه مي وژنه بې سنگساره ليونتوب ته دي نږدې كړم
يو لښكر د رقيبانو په ما هيڅ كولای نه سي
خو ديار خوله كي انكاره ليونتوب ته دي نږدې كړم
بيا مي نوم په خوله ياد نه كړې په ما بد ښكاري ستا كلى
دا دی وځم دي له ښاره ليونتوب ته دي نږدې كړم
په پښېمانو قدمونو بيرته شاته راتلای نه سم
ميني نه لرمه چاره ليونتوب ته دي نږدې كړم

ته د تورو غرونو ها خوا ته ژوندی اوسې پردېسه
زه دي غم كړمه بيماره ليونتوب ته دي نږدې كړم

۱۳۸۵\۹\۱۰

# ترخې شپې

د یـــــار ژونـــــد غوا ړمـــــه ویـــــره بـــــې لـــــه تـــــا
مـــــورِ خوشـــــحاله یـــــو شـــــوګیره بـــــې لـــــه تـــــا

زلزلـــــې مـــــي پـــــر زړه ځـــــوک نـــــه ســـــي را وړلای
د یـــــار ســـــترګو کـــــي تـــــا ثیره بـــــې لـــــه تـــــا
کـــــه اشـــــنا مـــــي دی باچـــــا خـــــو هـــــیڅ ځـــــای نـــــه ځـــــي
ای زمـــــا فکـــــره وزیـــــره بـــــې لـــــه تـــــا
تـــــه د یـــــار د سُـــــورکو شـــــونډو را بهـــــر ســـــه
خـــــوب مـــــي هـــــیڅ نـــــه دی تعبیـــــره بـــــې لـــــه تـــــا
دا د ژونـــــد شـــــپې ترخـــــې ســـــوې نـــــه تېرېـــــږي
د جانـــــان د مـــــخ تصـــــویره بـــــې لـــــه تـــــا
ټـــــول ظلمونـــــه مـــــي پـــــر ســـــر ســـــترګو قبـــــول دي
خـــــو پـــــه مینـــــه کـــــي تغیـــــره بـــــې لـــــه تـــــا

د اُمیـــــد غـــــوټۍ پـــــه اوښـــــکو نـــــه ګـــــل کیـــــږي
پـــــردېس شـــــل نـــــه کـــــړه تقـــــدیره بـــــې لـــــه تـــــا

۱۳۸۵\۸\۱۵

# مور داسي نه وو

څوک به د خپل دوران اتل خو شحال ختټک جوړیږي
چي یې خبري دښمنانو ته سبق جوړیږي

پخوا د کلي مشرانو روغه جوړه کول
اوس که جګړه وي نو د لاسه د ملک جوړیږي
یارانو راسئ نوی رنګ نوی انداز وګورئ
نن په جامو کي د انجلۍ په شان هلک جوړیږي
خدایه زه داسي آبادي وطن کي نه غواړمه
چي هدیرو باندي مارکیټ د یو احمق جوړیږي
د نورو ژوند ته اسانتیا وي برا بري سولې
مور ته بمونه بس د یو بل په کومک جوړیږي
دښمنه څومره چي دي وس وي نن مي وزوروه
سبا به زما لاسونه ستا خولې ته چنګک جوړیږي
چي لاس وهنه د شیطان ګاوندي نه وي پکښي
په یوه کور کي د پښتون سره تاجک جوړیږي
خبري ډېري سر یې یو دی که وه داسي حالات
زما او ستا د کلي منځ کي به اټک جوړیږي
ولي مو توري د دښمن په ځیګر ښخي نه کړې؟
ولي مو غاړي بیا نیم میتر په خامک جوړیږ؟

پردېسه چپ او سېږه دې وطن کي هیڅ مه وایه
په ورور دي وژني ورته اوس نوی ټوپک جوړیږي

۱۳۸۴\۱۱\۱۱

# حيرانتيا

دا هجـــران دی کـــه وصـــال دی نـــه پـــو هيـــږم
تـــن خفـــه زړه مـــي خوشـــحال دی نـــه پـــو هيـــږم

چـــي مـــي ټـــول عمـــر زړګـــی پکښـــې بنـــدي ســـو
دا يـــې زلفـــي دي کـــه جـــال دی نـــه پـــوهيږم
زمـــوږ د کلـــي کـــوڅې اور واخيســـت لمبـــه ســـو ه
کـــه پـــر ســـر د يـــار ســـور شـــال دی نـــه پـــو هيـــږم
ټولـــه شـــپه ورپســـې ژاړم چـــي را يـــاد ســـي
دا مـــي حـــال دا مـــي احـــوال دی نـــه پـــو هيـــږم
جانـــان ولـــي د رقيـــب د غـــاړي هـــار ســـو
زمـــا خـــو جـــار تـــرې ســـر او مـــال دی نـــه پـــوهيږم
دا د غـــم شـــپېې د هـــر چـــا پـــر زړه تـــم ســـي
کـــه پـــر مـــا يـــو ســـاعت کـــال دی نـــه پـــوهيږم
يـــاره نـــن راتـــه صـــفا خبـــره وکـــه
زمـــا لپـــاره دي څـــه خيـــال دی نـــه پـــوهيږم

ځـــان مـــي تـــه يـــې زړه مـــي تـــه يـــې ای پردېســـه
بيـــا دي ولـــي رقيـــب ســـيال دی نـــه پـــوهيږم

۱۳۸۴\۱۲\۴

# تیروتنه

ستا خبري د اوبو پر مخ لیکل دي
ستا وعدې عبث وختونه تیرول دي

نه بلبل سوې نه سورګل او نه اغزی سوې
یاره ګران دي عادتونه پیژندل دي
د هغې ورځې نه پس درنه توبه کړم
چې رقیب سره ولاړه وې خندل دي
تا تې درکړه خوشحالي خو زه ژړېږم
ویشل سوي برخې ټولي د ازل دي
همېشه به وم ژوندی په انتظار کې
بس درځم درځم هر وخت راته ویل دي
زمونږ جونګړي تې یو شپه را وله خدایه !
ښکلي د ښکلي محل وه د محل دي
د ګل رنګه هلمند دي جانان د پاره
ما پر ېښې ښکلي ټوله د کابل دي

پردېس ځکه د اشنا نه پردی سوی
اوس خبري د یاری په مُبایل دي

۱۳۸۴\۱۲\۲۹

# زړه او ځان

هــر چــا نــه لــري اوســو زړه رانــه غوښــتنه وكــړه
تنهــا بــه نــه تېرېــږي ژونــد مــا تــرې پوښــتنه وكــړه

يــا بــه يــو دواړه ملامــت يــا بــې ګنــاه يــو دواړه
مــا بــه هــيڅ نــه هيــروی تــا چــي يــې ســتاينه وكــړه
زه يـــې پخـــوا لا پرهرونـــو بانـــدي مـــوړ ســـاتلم
خــو دا دی ســتا ســره يــې اوس د خــولګۍ ژمنــه وكــړه
اوس بــه پــر يــار ســي را خپــاره د حيــرا نتيــا رنګونــه
ســتا د ژړ رنــګ زمــا د پرهــر كــه يــې ليدنــه وكــړه
څــومره نــادان وې زه دي پريښــوولم د يــار ســترګو تــه
چــا چــي ويشــتلي ګــوره چــا يــې درملنــه وكــړه
هغــه خنــدا چــي اننګــو كــې جــوړول ډولونــه
زه خـــو يـــې وړی ومـــه تـــا مـــي پلټنـــه وكـــړه
غنچــه د ګلــو مــي پــه لاس كــي انتظــار يــې كــوم
راســـره بيـــا جانـــان يـــوه وعـــده اغزنـــه وكـــړه
د رقيـــب مـــخ تـــه دي راوكتـــل پـــه ډېـــره مينـــه
يـــاره دا ســـتا د شـــوخ نظـــر نـــه مـــي مننـــه وكـــړه

ليـک يې راغلی دی که خدای کول پردېس به راسي
ډېر سره ګران يو زما په ياد يې دا ليکنه وکړه

١٣٨٥\٢\١٩

# ملاقات

د دیـــــدن لاره بنــــدوي ډېــــر مشــــــکلات راکــــوي
د چــــا ګنـــــاه نـــــه ده پرهـــــر زړه تـــــه حــــالات راکـــــوي

د عشـــق بیمـــار یـــم طبیبـــان ســـول د بېلتـــو ن ملګـــري
د خـــوب خنـــدا نـــه یـــې پرهیزکړمـــه غـــم زیـــات راکـــوي
د اشـــنا حُســـــن ورځ پـــه ورځ زیـــاتېږي خـــوار نصـــیبه
کلـــه بـــې مـــا تـــه د بوســـې پـــه نـــوم زکـــات راکـــوي
زه د بېلتـــون شـــپو کـــي لـــیکم ورتـــه د زړه خبـــري
ځـــواب رټلـــی یـــار پـــر وخـــت د ملاقـــات راکـــوي
لکـــه چـــي زمـــا ســـره تـــر عمـــره اوســـیدل یـــې خـــوښ دي
یـــاره یادونـــه دي غیـــږداســـي پـــه احتیـــاط راکـــوي
تـــا بـــه پـــه ژونـــد وي جـــدا کـــړي څـــو بېوســـه زړونـــه
بېلتونـــه یـــار بـــه زیـــری نـــن ســـتا د وفـــات راکـــوي
ســـترګي دي نـــه دي د هلمنـــد ســـیند دی څپـــې نظـــر دي
مـــا ډوبـــوي مســـکا د شـــونډو دي نجـــات راکـــوي

ځکـــه پـــردېس پـــه خپـــل وطـــن کـــي لا پـــردېس اوســـېږم
زمـــوږ هـــر څـــه مفـــت غـــواړي خپـــل هـــر څـــه پـــه خیـــرات راکـــوي

**۱۳۸۵\۲\۲۸**

لښکرګاه

# د میني پت

ولـــــې رانغلـــــې صـــــنمه لا تـــــر اوســــه
د راتلـــو دي يـــم پـــه طمعـــه لا تـــر اوســـه

ســر او مــال مــي تــر قربــان ســه چــي هــر ځــای وي
پـــت د مینـــي يـــې پالمـــه لا تـــر اوســـه
د جانـــان ســـره راځـــې ورســـره ځـــې نـــه
غمـــه پاتـــه ســـوې بـــې غمـــه لا تـــر اوســـه
پـــه زړه کلـــک دی ځـــواب نـــه ســـي رالیـــږلای
چـــي هـــر لیـــک ورتـــه لیکمـــه لا تـــر اوســـه
يـــار چـــي تللـــی دی دا ځـــو کلونـــه تېـــر ســـول
خـــوب مـــي نـــه ســـته ای عالمـــه لا تـــر اوســـه
پرهرونـــه مـــي د زړه پـــر زياتېـــدو دي
نـــا خبـــره يـــې ملهمـــه لا تـــر اوســـه
چـــي ژونـــدی يـــم مهربـــان بـــه درتـــه وايـــم
مـــړ دي نـــه يـــم د ســـتمه لا تـــر اوســـه

د پـــردېس وران کلـــی ځـــومره پـــر مـــا ګـــران دی
پـــه ورځ ځـــو ځلـــه ورځمـــه لا تـــر اوســـه

۱۳۸۵\۷\۲۲

# اختر

اختــره راتــه يــاد کــه تيــر زمــان د مــا شــوم تــوب
زمــوږ خــوار کلــي تــه راولــه يــاران د ماشــوم تــوب

خــو کاشــکي دي وای ځــان ســره هغــه شــېبې راوړي
پــه هــر ســاعت مــي کــړی دی ارمــان د ماشــوم تــوب
دا خلــک دي بــې درده يــو او بــل پــه کــانړو ولــي
پــر مــوږ يــې هــم کورونــه کړلــه وران د ماشــوم تــوب
يو ته يې خوشحالي راوړې نور هري خوا ته غم دی کيسه که
درتــــه وکـــــړي هـــــر افغـــــان د ماشـــــوم تـــــوب
آخيــر بــه مايوســي ورتــه اختــر کــي غيــږه ورکــي
چــي قــدر نــه کــړي زمــا غونــدي انســان د ماشــوم تــوب
چــي اوس دي پــه جرګــو اشــنا تــر کلــي راتــلای نــه ســي
زړګيــــه هغــــه ژونــــد وو پــــر جهــــان د ماشــــوم تــــوب
اختــــره زه بخښـــــنه غـــــواړم ډېـــــر يمـــــه بـــــې وســـــه
لمــانځلای چــي دي نــه ســمه پــه شــان د ماشــوم تــوب
کــه زړه مــي ورکــی څــه پــروا کــړي بيــر تــه بــه يــې راوړي
مـــا هـــم يادګـــار ســـاتلی د جانـــان د ماشـــوم تـــوب

چــا ښــکلي جــامې وا غوســتې څــوک چــا تــه انتظــار کــړي
زه ليکمــــه پــــردېس يـــار تــــه بيـــان د ماشـــوم تـــوب

**۱۳۸۵\۸\۱۱**

کوچنی اختر

# اخطار

لا ســـــونه بـــــه رقیبــــه ســــتا ګریـــــوان تــــه رســـــوم
کیســــــه د رســـــره اوس د جنــــګ میـــــدان تــــه رســـــوم

پښـــتون غـــرور مـــي مـــات کـــړه ټـــول د صـــبر زندانونـــه
ځـــان ســـتا پـــر ســـر د عمـــر قیـــد زنـــدان تـــه رســـوم
یـــوازي یـــي غمونـــه شـــوګیرې زمـــاحق نـــه دی
اعـــلان د بغـــاوت مـــي نـــن اســـمان تـــه رســـوم
د ســـر او مـــال نـــه تیـــر یـــم هـــیڅ پـــروا د رقیـــب نـــه کـــړم
دا یـــــو اواز د زړه مـــــي خپـــــل جانـــــان تـــــه رســـــوم
زه داسـي ژونـدون نـه غـواړم چـي يـار وي سـتا پـه څنـګ کـي
ځـــان مـــرګ تـــه رســـومه او مـــرګ ځـــان تـــه رســـوم
دا ډېـــره خاموشـــي مـــي بـــې ننګـــي ګـــڼلای نـــه ســـې
یقـــین بـــه دي پـــه دې لار کـــي ګُمـــان تـــه رســـوم
ښــــکارېږمه کامیابــــه د رقیـــــب مقابلــــه کــــي
ډیـــوه دي ده ســـپین مـــخ شـــپو د هجـــران تـــه رســـوم

پـــه نیمـــه خـــو پـــوه نـــه ســـوې اوس پـــوره خبـــره واوره
خـــولګۍ بـــه د پـــردېس د زړه ارمـــان تـــه رســـوم

۱۳۸۲\۲\۱۱

# د کاڼي زړه

مخ په شبنم مېنځي بل کار نه کوي
ګله ګلونه خو سینګار نه کوي

ازلي حُسن دي زیاتی کړی دی
مهرباني چي پر ما خوار نه کوي

به غیر له تا په دې دُنیا کي بل څوک
په ژړېدو مي افتخار نه کوي

څوک چي د ګل خو شبویي نه پېژني
هغه پسرلي ته انتظار نه کوي

تل هغه زړه د غم نه پټ او سېږي
د پټې میني چي اظهار نه کوي

زه لیوني وم درته ومي ویل
چي بې له تا مي زړه قرار نه کوي

چي پکښې ستا دا ښکلي سترګي نه وي
مزه دا کلی او دا ښار نه کوي

د زړه لاسونه مې اغزو سوري کړل
بیا هم د ګل څخه انکار نه کوي

مور ورته ستوري د اسمان حسابو
ښکلي د خپلو وعدو شمار نه کوي

د کاڼي زړه سره مې مینه کړې
خدای دي زما مرګ په سنګسار نه کوي

په قدمو کې ورته زړه ایږدمه
اشنا راتله په دغه لار نه کوي

پردېس دوران د لیونتوب تیر کړی
نور به په ښکلو اعتبار نه کوي

۱۳۸۴\۱۱\۴

# تېر وختونه

څه دوران د ليونتوب وو څه خواږه وختونه تېر سول
چې له هر څه بې پروا وو اوس غمونه راته ډېر سول

نه خبره د خپل ځان وم چې ماشوم وم ليوني وم
نه د چا د زړه ګلاب نه د چا سترګو کې اغزي وم

نه مې غوښتل د چا بده نه په بد مې څوک خوشحال وه
نه ځواب د چا غلط وو نه غلطه لار د سوال وه

نه د چا په انتظار کې مې ثانيې وې حسابلې
نه مې دوې بې ګناه سترګې د چا غم وې ژړولې

د آزاد ژوند ونخاوند وم د چا غم راسره نه وو
پوه د شپو ورځو په خوند وم چې صنم راسره نه وو

چې زړګي ته مې دوو سترګو د جانان لاره پيدا کړه
زما اوښکو په کوڅو کې د ګريوان لاره پيدا کړه

د وصال په خوب مو نه سوم سهار نه وو بېلتون راغی
خندا ولاړه اشنا ولاړی تريخ ساعت د ژوندون راغی

د دیدن تږول اُمیدونه مې د زړه څخه بهر سوه
تږوله خلک په ظلمونو د بې ننګه یار خبر سوه

بس د ژوند پرلویه دښته به دي پربږدي په غمو کي
ما ته نه ښکاري یارانو حوصله د ښکلو زړو کي

ستا په کلي کي مې تیر کړله کلونه ته رانغلې
لا هم هلته وم جانانه تر پرونه ته رانغلې

تا راکړی لویه خدایه دې دُنیا کي امانت ژوند
د نفرت نه مې نفرت دی تیروم په محبت ژوند

د هر غم زور مې لیدلی ګرانه ستا په یارانه کي
ته خو شحال اوسې جانانه دا د غم په زمانه کي

هم یم میني سوځولی هم په میني کي لمبې دي
هم ګُمان یې پر ایمان کړم چي د میني یې توبې دي

ما پر بدو کړي ښه دي ځکه نن مې قدر نسته
هم جانان رانه خفه دی هم د زړه مې صبر نسته

اشنا ښکلی دی د رنګه چا ویل چي ملامت دی
پر وعدو چي وفا نه کړي دا د هر ښکلي عادت دی

هغــه څــوک چــي زمــا ځــان وو هغــه هيرکــړم د ځــان هيــر يــم
ژونــد د غــم کــوهي کــي تيرســو د خوښــۍ د کــاروان هيــر يــم

ورځ تــر بلــې غمجــن کيــږم دا د غــم پــه دُنيــاګۍ کــې
لويــه خدايــه د هــر ښــکلي نظــر مــات تــه مــي لــوګۍ کــې

۱۳۸۵\۳\۱۵

## تمنا

ښــکلې راســه چــي دي ښــکل کــړم ښــکلول دي ګنــاه نــه ده
لــږ مــــي زړه تــــه رانــــږدې ســــه خپلــــول دي ګنــــاه نــــه د ه

مــا تــه مــه وايــه چــي څــوک يــې زمــا د مينــي قــدر وکــه
پــــه ديــــدن پســــې دي مرمــــه راتــــه وايــــې صــــبر وکــــه

لــږ خــو ځــان تــه فکــر وکــه بــې وفــا وخــت بــې وفــا دی
تيــر وخــت بيرتــه نــه را ګرځــي دا عــادت يــې لکــه ســتا دی

يــاره داســي وخــت بــه راســي تــا بــه هــم زماپــه شــان کــي
لکــه زه چــي حيــران ښــکارم تــا بــه هــم داســي حيــران کــي

دا حــالات دي زمــوږ وطــن کــي هــر څــوک ډيــر کــوي ظلمونــه
خــــزان ورژول ســــتا پــــه شــــان تنکــــي ګلونــــه

دوه لاســـونه چـــي د نـــازه د چـــا غـــاړي تـــه امېـــل ســـي
د ظـــالم پـــه لاس هغـــه ســـینه ګولـــو بانـــدي غلبېـــل ســـي

اوس تـــه ووایـــه جانانـــه ظلـــم ښـــه دی او کـــه مینـــه
مینـــه نـــه منـــي هیڅکلـــه چـــي ســـي تـــوي د انســـان وینـــه

خندیـــدلي لـــه اولـــه خـــوا اخیـــردي لیـــوني کـــړم
پـــه نـــازونو چـــي دي خپـــل کـــړم پـــه غـــرور چـــي دي پـــردی کـــړم

یـــاره عمـــر د ګـــل لـــږ دی د بهـــار موســـم بـــه تیـــر ســـي
پتـــه مینـــه ســـاتې ولـــي د اظهـــار موســـم بـــه تیـــر ســـي

پـــر هغـــه تصـــویر مئـــین یـــې چـــي هنـــداره کـــي ځـــان ګـــورې
ای نادانـــه یـــو ځـــل راســـه کـــه مـــي خیـــري ګریـــوان ګـــورې

اجـــازه راکـــه جانانـــه چـــي دي ښـــکلي مـــخ تـــه ګـــورم
یـــا بـــه نـــه یـــې یـــا بـــه نـــه یـــم خپـــل نیمګـــړي بخـــت تـــه ګـــوروم

رانـــه وســـاته نـــن پتـــه دغـــه ښـــکلې خـــولګي تانـــده
د خپـــل حُســـن پـــه دوران کـــي پـــر تـــار تـــار ګریـــوان مـــي خانـــده

تـــه ظـــالم د وخـــت پـــه شـــان یـــې تـــه بهـــار راڅخـــه ســـاته
تـــه خـــولګي راڅخـــه ســـاته تـــه اقـــرار راڅخـــه ســـاته

۱۳۸۵\۴\۱۳

# د خدای په امان

جانـــان پـــه کلـــي کـــي پـــا تېږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو
کلـــه يـــې زړه رانـــه صـــبرېږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

خدايـــه ګنـــاه مـــي څـــه ده ځـــم د ګلســـتان وطـــن نـــه
د پســـر لـــي وږمـــه لګېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

ژونـــدي مـــو وينـــو تـــه دي تـــږي مـــړه هـــم هـــيڅ نـــه وايـــي
ظـــالم خوشـــحاله دی خنـــدېږي خو مـــوږ کـــډ کوو

د بېوســـي نـــه راتـــه ځـــان ډېـــر ملامـــت ښـــکاره ســـو
چـــي زمـــا ورونـــه وژل کېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

جانانـــه مـــه ژاړه قســـمت د يـــو او بـــل نـــه بېـــل کـــړو
پـــر تـــا بـــه ســـرې لمبـــې بلېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

ورک دي ژونـدون سـي مـرګ تـرې ښـه دی خـو چـي دلتـه مـړ سـم
مـــړه ســـوه ځوانـــان پيغلـــي ژړېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

مـــخ رانـــه واړوه چـــي ســـترګي دي ســـي هيـــري رانـــه
مينـــه دي ورځ پـــه ورځ زيـــاتېږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

الله خبـــــر دی زه بـــــه چيـــــري مـــــزدوري کومـــــه
اوس راتـــه هـــيڅ نـــه معلـــومېږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

خدایـــه قیامـــت نـــه دی اســـمان هـــم نړیـــدلی نـــه دی
ســـتوري هـــم هغســـې رپېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

د خـــدای پـــه امـــان تـــا هـــم د زړونـــو پـــر مالـــک ســـپارمه
وګـــوره اوښـــکي مـــې بهېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

کلـــه نـــا کلـــه د پـــردېس مـــزار تـــه پورتـــه کـــه لاس
یـــو ه شـــېبه مـــې نـــه هیرېـــږي خـــو مـــوږ کـــډه کـــوو

۱۳۸۵\۵\۱۴

## ښکلی ځوان

زموږ په کلي کي يو وخت يو ښکلی ځوان وو
د هر چا د سترګو تور پر هر چا ګران وو

کليوال يې په مجلس نه مړېدله
ښه يې خوی وو او سپېڅلی مسلمان وو

هره ورځ د خندا ډکه خوله به راغی
هر سړی يې ښو اخلاق ته حيران وو

نه يې کړی د يوه غيبت وو بل ته
نه خوشحال د کليوالو په تاوان وو

چي د ده په شان څو نور ځوانان پيدا سي
بس همدا مي د ماشوم زړګي ارمان وو

هر ساعت به يې د الله شکر ادا کی
چي بېغمه چي ژوندی پر دې جهان وو

فريادوني له نيستۍ څخه ګوَله
هيڅ پيسې ور سره نه وې پريشان وو

د خدای ورکړه ده ځوان ډېر دولت پيدا کی
د خپل بس موټر په خپله موټروان وو

د پيسو سره يې مينه سو له زياته
ځيني هير هغه د لوړي تير زمان وو

بلدېینګونې د لمر وړانګو برېښنَوَله
اول نه خو بیا زموږ د کلي خان وو

تجارت یې د انسان د وینو زده کی
افغانان بې قتلول خپله افغان وو

ورسره کبر غرور سو له ملګري
هر سړی یې پر دوستۍ باندې پښیمان وو

یوه ورځ زموږ پر کلي زلزله سوه
نور ولاړ وه د ده ښکلی بلدېینګ وران وو

بیر ته را وستی الله هغه حالت پرې
وخت که هر څومره په منده تېرې روان وو

بیر ته ختمه سوه خاني مسکیني راغله
بیر ته هغسي عاجزه ځوان وو

نه یې وکی سخاوت نه خیراتونه
خدای چې کړی په ده باندې امتحان وو

داخل څوک د مجلس نه لري څه وکړي
په فکرونو کې وو ډوب په غم د ځان وو

خدای پټ کړی دی عزت په عاجزۍ کې
د دې وروسته دا د ځوان پر خوله اعلان وو

د بنده سره لویي څومره بد کار دی
دا زما ماشوم زړګی څومره نادان وو

د پیسو میني کړه لار راڅخه ورکه
لوړه مځکه مي لیده کښته اسمان وو

څو کلونه تر غرمې پوري بیده وم
رانه هیر وخت د لمانځه او د اذان وو

دا به حال وي همېشه د کبرجنو
دا چي هر څه وسول امر د سبحان وو

د آزاد ژوندون په قدر چي پوه نه سو
اوس جهان ورته وړوکی یو زندان وو

خدایه ستا تر باچاهي پردېس قربان کړې
نن مي ولیدی د ژرندي آسېوان وو

١٣٨٥\٤\٢٨

ژوند تیرېږي

په بهار پسې مدام وي خزان داسې
چې راځي دُنيا ته وي به روان داسې

پر هر حال باندې مې شکر دی خاونده
لکه تللی چې وو راغی جانان داسې

دلته ګل وو خو اوس نسته که دي یاد وي
ستا به هم تیر سي د حُسن دوران داسې

چې غلطې ارادې ورسره نه وي
سړه یوځای دي وي دوه مئینان داسې

لکه کوم عادل باچا چې پر تخت کښېني
ستا تصویر مې د زړه کور کی ودان داسې

لاس په لاس د رقیبانو مخ ته ګرځې
څومره خوند کوي سپېځلي یاران داسې

په سیالۍ کې د رقیب چې دي کامیاب کړم
همېشه اوسې کامیاب پر جهان داسې

یم حیران ستا په زړه کې څنګه زړه دی
نه دی کلک کاڼي اشنا د بیابان داسې

چې خفه نه سې رویباره یار ته وکه
سلام داسې کلام داسې بیان داسې

دیـــدن راوړه کـــه مــــي ســـر ځـــي پـــروا نســـته
زه د مینــــــي غــــــوارم ګټــــــه تـــــاوان داســــــي

ســــــتا د مـــــخ ښــــــکلول زمــــــا د زړه ارمـــــان وو
ســــتا د زړه دي خـــدای پـــوره کـــړي ارمـــان داســـي

چــــي يــــي تــــل خنـــدا پــــه مـــوږ پـــوري کولـــه
ژړيــــــــدلي دي هغــــــــه رقیبـــــــان داســــــــي

زمـــا نـــه رنـــګ د اوښـــکو هیـــر ســـو خوشـــحالیږه
نــــن مــــي وویــــل زړګــــي تــــه ګریـــوان داســــي

ملامــــت نــــه دی بلبــــل چـــــي پـــــر مئـــین دی
وي کــــتې مــــې لکــــه ســــتا شــــونډي ګــــلان داســــي

مــــا تــــه ښــــکاري يــــاره دواړه لیــــوني ســــوه
چــــي پــــه منــــډه ســــوه ببلتــــون او هجــــران داســــي

د ښــو پــه غشــو ویشــتی دي پــر زړه یــم
خــدای دي مــه کــړه پــر بــل چــا مهربــان داســي

شــبنم مــخ مېنځــي د ګــل خــو ځــان تــر جــار کــي
د پــــرد ېس ژونــــد دي تــــر تــــا ســــي قربــــان داســــي

۱۳۸۵\۴\۱۷

# د وربل سیوری

خوب مې لیدی چې بید بېدم ستا د وربل سیوري ته
ما ویل غرمه به تېروم ستا د وربل سیوري ته

که اجازه دي وي یو تار دي له وربله اخلم
د زړه پرهر به پرې ګنډم ستا د وربل سیوري ته

یو کال بېلتون او هجران د واړه راپسې ګرځیدل
په شان د خال به پټیدم ستا د وربل سیوري ته

د خدای لپاره راته مه وایه چې بیرته ولاړ سه
نه غواړم ژوند مرګ قبلوم ستا د وربل سیوري ته

ښکاري دُعا مې سوه قبوله د خدای در کې اشنا
ځکه خو نه سي را تلای غم ستا د وربل سیور ته

لکه چې څوک تر ونې لاندي وخوري باغ کې میوه
ستا په خولګۍ نه مړېدم ستا د وربل سیوري ته

د خوارہ خوبه چا را ویښ کړمه ډېر ظلم وسو
دا سي ارام چې اوسېدم ستا د وربل سیوري ته

بېلتـــون ســـزا د هغـــه جـــرم مـــا تـــه اوس راکـــوي
زه چـــي ماشـــوم وم لوبېـــدم ســـتا د وربـــل ســـیوري تـــه

بیـــا د حـــالاتو پـــر زړه بـــل کـــه د غـــم ســـره اورونـــه
یـــو ځـــل مـــي بیـــا پربـــرېده صـــنم ســـتا د وربـــل ســـیوري تـــه

هغـــه وخـــت ســـتا د مـــخ کتـــاب کـــي هـــر ســـر لیـــک وو مینـــه
مـــا چـــي لوســـتل پـــه پوهیـــدم ســـتا د وربـــل ســـیوري تـــه

زه د پـــردېس ژونـــدون ترخـــې خـــاطرې یـــاد کـــي لـــرم
یـــو وخـــت بـــه تـــولي هیـــروم ســـتا د وربـــل ســـیوري تـــه

۱۳۸۵\۱۱\۱۹

# خولګۍ

پــــه تــول ژونــــد يـــو ه شـــپه بـــه مــــي هيــــر نــــه ســـي
يـــاره ســـتا مـــړاوي کاتـــه بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

کـــــه پـــــه ســــرو ســـــترګو ژړا درپســــــې وکـــــړم
پـــه ســـرو شـــونډو خند ېـــده بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

زه دي خپـــــــل کلـــــــي تـــــــه ولـــــــي رابللــــــم
اوس تـــــر مرګـــــه دا کوڅـــه بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

چـــي وصـــال کـــي دي هجـــران رابانـــدي راوســـت
ای جانانـــه هغـــه شـــپه بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

زمـــا د زړه غوښـــي پـــر بـــل چـــا پېـــرزو نـــه وې
ســـتا ظلمونـــه راســـره بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

ډېـــري شـــپې بـــې پـــه يـــادونو کـــي ســـبا کـــړم
يـــار د نـــاز پـــه خـــوب بيـــده بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

اول مينـــــــه بيـــــــا رټلـــــــی ځـــــــواب راغـــــــی
دا بـــه هيــــر کړمـــه هغـــه بـــه مــــي هيــــر نـــه ســـي

خلکـــو نـــوره یـــاري نـــه کـــوم د ښـــکلو
خپـــل زخمـــي زخمـــي سـینه بــه مـــي هیـــر نـــه ســي

پــــر زخمونـــو د ملهـــم پـــــر ځـــای ږدي مالګـــــه
د یـــار رحـــم حوصـــله بـــه مـــي هیـــر نـــه ســي

د رقیـــــب زړه یـــــې ســـــوځلی وو بـــــې اوره
زړه راکښـــونکې اشـــاره بـــه مـــي هیـــر نـــه ســي

پربــــږده مـــا چـــي د فکرونـــو پـــه تـــال زانګـــم
بـــس پـــه هیڅـــه بهانـــه بـــه مـــي هیـــر نـــه ســي

قســـمونه یـــې د مـــخ لیـــدو تـــه مـــات ســـول
پـــه توبـــه توبـــه توبـــه بـــه مـــي هیـــر نـــه ســي

ملامتــــه یـــــم پردېســــه خــــولګۍ واخلـــــه
بیـــا پـــه مینـــه کـــي ناغـــه بـــه مـــي هیـــر نـــه ســي

۱۳۸۵\۱\۱۱

# بې اشنا پسرلی

هر کله راسې په خندا پسرلیه
پر وعده ټینګ او با وفا پسرلیه

ستا د راتلو په انتظار انتظار
غمجنې شپې مو کړې سبا پسرلیه

د دیدن زیری یې خوږ منو زړوته
تل دې ملګرې وي ښکلا پسرلیه

خو ډېر افسوس ستا په راتلو راڅخه
اشنا د ژوند لار کړه جلا پسرلیه

ښکلو ګلونو ته دې نه ګورمه
د ښکلو مینې کړم تباه پسرلیه

ما کړل رنګین په اسویلو غمونه
تا کړل رنګینه دا دُنیا پسرلیه

خپل دې ګلونو ته شبنم راوستی
زما دې سترګو ته ژړا پسرلیه

راتـــــه ښــــکاريږي بــــې اجلــــه مرګــــى
چـــي بـــې اشــــنا راغلـــې پـــر مـــا پســــرليه

راســــره يــــې نســـــته د ليـــــدلو طاقـــــت
د ګـــــل پــــر شــــونډو د مســــکا پســــرليه

جانــــان خفـــه ســــو تــــه هـــم مـــخ واړوه
ښــــه يــــم تنهــــا تنهــــا پســــرليه

رنګونــــه تـــول دي زمـــا د يــــار پــــه شــــان دي
هســــي نــــه کــــړې دي وي غــــلا پســــرليه

يـــــو څــــو ســـــپېڅلي ارمانونـــــه د زړه
ســــو لـــــه نيمګــــړي نيمــــه خــــوا پســــرليه

زمـــــا ســــلام ســــتا د ګلونــــو غونــــدي
وايــــه پــــر کلـــــي د اشــــنا پســــرليه

د يــــار ســــتم کـــــه وو پــــر دېس وژلــــى
قبــــر تــــه راســــه خامخــــا پســــرليه

۱۳۸۵\۱\۲

څه مانا

نه پو هیږم داسي کتل څه مانا
وار په وار مي خوا ته راتلل څه مانا

مینه چي دي درې ورځي دوام نه کړي
ښکلې ناز ادا دي اول څه مانا

زړه نه چي مي خپل زړګی ساتې لري
یار دي یمه یار دا ویل څه مانا

یاره کوم رواج د محبت دی دا
یو ځل رابلل بیا رټل څه مانا

زما په مخ کي نه سو شرمینده رقیب
لاس کي چي دي راکی دا ګل څه مانا

سترګي چي دي توري ازلي دي نو
بیا پرې د کجل لګول څه مانا

زه وایم چي خوب تر تا قربان کړمه
خوب کي دي جانانه لیدل څه مانا

ټوله زغم مي صبر رانه وخوړی
صبر څه دی دا ژړیدل څه مانا

ژونـــــد څـــــه دی زمـــــا لپـــــاره غـــــم دی غـــــم
غـــــم کـــــي د انســـــان او ســـــیدل څـــــه مانـــــا

خولـــــه کـــــي د اشـــــنا چـــــي تـــــرنم نـــــه ســـــو
مـــــه لیکـــــه پردېســـــه غـــــزل څـــــه مانـــــا

۱۳۸۵\۲\۱۱

# ځوانیمرګ خاطر ته

د خـــــــړ خېبــــــــر خــــــــړي درې خـــــاطر تــــــه
وا یــــــــم ســــــــلام روح د مصــــــــري خــــــاطر تـــــه

د بــــــــې وفـــــــا صــــــــنم جفـــــــا وژلـــــــى
ژونــــــــد یـــــــــي هــــــــم وو ذرې ذرې خاطرتـــــــه

الهـــــــي داځــــــل مــــــي دُعــــــا قبــــــول کــــــړې
چــــــي ســــــي رڼــــــا تــــــوري تيــــــارې خــــــاطر تـــــه

د ســـــــروګلونو رنــــــګ بــــــه هيــــــر وو ځينــــــي
يــــــار چــــــي بــــــې شــــــونډي کړلــــــې ســــــرې خــــــاطر تــــــه

چــــــي پـــــــه هـــــر شــــعر کــــــي يــــــي ســــــتاينه کــــــړې
ورکــــــــړى غــــــــم هغــــــــي څيــــــــرې خاطرتــــــــه

د خېبــــــــر ټولــــــــه ســــــــپلني لــــــــوګى ســــــــول
ښــــــکاري چــــــا زلفــــــي کــــــړې خپــــــرې خــــــاطر تــــــه

مــــــــرور وخــــــــت ورســــــــره نــــــــه ســــــــو پخـــــــلا
وې پــــــــه نصــــــــيب کــــــــي شــــــــوګيرې خاطرتــــــــه

نظــــــــر يــــــــې ګــــــــل وو زړه وو ګــــــــل ورســــــــره
خــــــــزان نيــــــــولي وې ارې خــــــــاطر تــــــــه

چــــي یــــې پـــه ژونـــد خبــــر تـــه نــــه راتللــــې
مــــړ ســـــو دُعــــا کــــړې کـــه ښـــیرې خاطرتــــه

ډ بــــر دو مــــره ډ بـــر ســــتا د ظلونـــو پــــه شـــان
ګــــلان پــــر قبــــر بـــه کـــرې خـــاطر تــــه

مـــــا یــــــې لا ښـــــکلی مـــــخ لیــــدلی نـــــه وو
ښـــــه راغلــــــی وویــــــل هــــــدیرې خاطرتـــــه

ورتـــــه دُعـــــا کـــــړه د پـــــرد ېس زړګیـــــه
کـــــه د ویلـــــو ثـــــه لـــــرې خاطرتـــــه

۱۳۸۵\۲\۳۰
دا شعر ارواح ښاد خاطر افریدي او د هغه اشنا ته ډالۍ سوی دی

ثه ووایم

دلتــه مــو ســندري پــه ســلګو بانــدي بــدلي ســوې
دلتــه خوشــحالۍ وې پــه غمــو بانــدي بــدلي ســوې

دلتــه ډېــري پيغلــي کونــډې ســوي دي د پــلار پــر کــور
دلتـــه پښـــتنې وې ليونـــو بانـــدي بـــدلي ســـوې

دلتــه تــاريخي اثــار هــر چــا تــر وســه لــوټ کړلــه
دلتــه کــلا ګــاني پــه مورچــو بانــدي بــدلي ســوې

دلتــه مشــران د يــو او بــل پــه ســيالۍ ظلــم کــړي
دلتــه د چــا اوښــکي بــارانو بانــدي بــدلي ســوې

دلتــه چــي يــي قــدر د پښــتو او صــداقت کــړی
دلتــه يــي ســيني پــه غلبېلــو بانــدي بــدلي ســوې

دلتــه هــر څــه وســول ټــول جهــان يــي تماشــه وکــړه
دلتــه ســري ډولــۍ پــه جنــازو بانــدي بــدلي ســوې

دلتـــه خـــو د لمرځلانـــده مـــخ لوګيـــو ونيـــوی
دلتــه ســپيني ورځــي تــورو شــپو بانــدي بــدلي ســوې

دلتـــه د ورور وينـــي د خـــور اوښـــکي بهيـــدلي دي
دلتـــه مـــو بـــاغچي پـــه هـــديرو بانـــدي بـــدلي ســـوې

دلتـــه مـــي خپـــل ورور لاســـونه وتـــړل پرديـــو تـــه
دلتـــه جـــذبې د زړه ګيلـــو بانـــدي بـــدلي ســـوې

دلتـــه بـــه يـــو لويـــه تجربـــه راســـي دتيـــر پـــه شـــان
دلتـــه کـــه بيـــا چيغـــي پـــه ټپـــو بانـــدي بـــدلي ســـوې

دلتـــه پـــردي ويـــنم رانـــه ورک پـــردېس خوبونـــه ســـول
دلتـــه مـــي شـــپې ټـــولي شـــوګيرو بانـــدي بـــدلي ســـوې

۱۳۸۵\۳\۲۴

## زما برخه

خپـــل قســـمت راتـــه کرلـــي ټـــول غمونـــه
پـــه مجبـــور زړه مـــي منلـــي ټـــول غمونـــه

زمـا پـه شـان يـې بـل څـوک دومـره قـدر نـه کـړي
بـــل ځـــای نـــه ځـــي پوهيـــدلي ټـــول غمونـــه

ســـتا پـــه لاس مـــي د ارمـــان جنـــازه باســـي
ســـتا لـــه خـــوا څخـــه راغلـــي ټـــول غمونـــه

مـــا ســـودا ورســـره کـــړې زړه پـــه زړه وه
جانـــان راکـــړل د خپـــل کلـــي ټـــول غمونـــه

يـــو پـــر مـــخ مـــي د رڼـــو اوښـــکو بـــاران دی
بـــل پـــر زړه مـــي وريـــدلي ټـــول غمونـــه

دا د کـــانې غونـــدې زړه تـــه دې حيـــران يـــم
غمګـــين نـــه ســـو ځينـــي تللـــي ټـــول غمونـــه

نـــن مـــي ولوســـتله ســـتا د مـــخ کتـــاب کـــي
خوشـــحالي نســـته ليکلـــي ټـــول غمونـــه

کـــړم ګـُمـــان چـــي ليـــونی بـــه رانـــه جـــوړ کـــړي
د زړه کـــور کـــي مـــي ســـاتلي ټـــول غمونـــه

ستا پر سرو شونډو خندا د خدایه غواړم
زما په برخه رسیدلي ټول غمونه

اسویلي ورته وړمه د پسرلي سوه
د زړه بڼ کې غوړیدلي ټول غمونه

راسه خدای د پاره ځان سره یې یوسه
ما تې مه پرېږده ای ښکلې ټول غمونه

یا غمونه قاتلان د اُمید نه وای
یا وای ستا کتو وژلي ټول غمونه

یا مې ستا سترګي لیدلي نه وای یاره
یا مې نه وای لیدلي ټول غمونه

یا مې اور د محبت په زړه کې نه وای
یا پکښې وای سوځیدلي ټول غمونه

یا کوڅه کې دي اثر دی چې درځمه
یا سول ما باندي غښتلي ټول غمونه

یا د ښکلو مینه ډکه ده له غمه
یا یې ما ته رابخښلي ټول غمونه

صـــــداقت لـــــره ســــزا ســــته خبــــر نــــه وم
محبـــــت ســـــره ترلـــــي ټـــــول غمونـــــه

پـــر تـــار تـــار ګريـــوان مـــي مـــه خانـــده جانانـــه
خيـــر کـــه ســـتا نـــه کوچيـــدلي ټـــول غمونـــه

ای ظالمـــه پـــرد ېس څنګـــه درنـــه هيـــر ســـوو
ســـتا پـــه غـــم يـــې پيژنـــدلي ټـــول غمونـــه

۱۳۸۴\۱۱\۲۰

## ټګ ګاونډی

په دوستۍ کي چي دُښمن دی نه پاریس دی نه لندن دی
زموږ د ځنګ یو ګاونډی دی په خو ښیو مو غمجن دی

همېشه غورځوي کاڼي دواړه لاسه شا ته نیسي
د پوښتني پر وخت هسي خالي لاس دُنیا ته نیسي
په ناولي لاس یې زموږ د ګران وطن زړګی خوږمن دی

ښه پوره سرمایه دار سو د وطن غرونه یې سوري کړل
یو په بل مو سره وژني راته جوړه یې خواري کړل
څوک بې لاس کي ورته قطعه ورانوونکی د ګلشن دی

د رښا څخه یې پر هیز کړو په تیارو کي سره ورک سوو
د نفاق اور یې بل کړی په لمبو کي سره ورک سوو
راته ویي سوځل دواړه یو مي زړه دی بل مي تن دی

زما وینو ته دی تږی زما ورور خپلول غواړي
لایي زړه سوړ سوی نه دی خپلول د کابل غواړي
خدایه وخت راسره مل کړې تر اټکه مي وطن دی

لویه خدایه دا ارمان مي د ناتوان زړګي پوره کي
خپلواکي غواړم یا هلته پر ما جوړه هدیره کي
د پردېس دژوند ارمان دی هم وصیت د زکندن دی
۱۳۸۴\۷\۱۰

## بېوفا

ما وفادار ګڼلې په خوی دي نه پوهیدم
ځکه خو ځیري ګریوان تولي دُنیا ولیدم

داسي دي وکتله نن د پردیو غوندي
اوس بې پروا ګرځمه د لیونیو غوندي
نور به تنها نه سمه غمو دي وپیژندم

راغلي یو دُنیا ته یو امانت یو دواړه
په دغه دوو خبرو خو ملامت یو دواړه
ته به مغرور ګرځیدې او زه به نه صبریدم

الله دي ما خاوري کي اوسې ژوندی جانانه
ژوند مي له تا قربان سه ای هلمندی جانانه
بیا دي هم مخ وا ړوی بې اوره وسوځیدم

آخیر چي ستا پر شونډو انکار انکار پاته سو
زما دا ټوله عمر یو انتظار پاته سو
پردېس پردېس ژوندون ته په سلګو وژړیدم

۱۳۸۴\۱۱\۲۳

## افسوس

وطنـــه ځنګــــه دي او لاد دی اتحـــاد نــــه غـــواړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فریــاد دی تــا آبــاد نــه غــواړي

داځــه پــه وســوه افغــاني بلــبلان داســي نــه وه
بهــار کــي هــر خــوا الوتــل پــه خــزان داســي نــه وه
اوس يې خو ښ کـار د هـر صياد دی ژوند آزاد نـه غـواړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فریــاد دی تــا آبــاد نــه غــواړي

زمــا ترځنګــه ای بــې ننګــه نــور مــي مــه زوروه
د پـر ســترې ســوی يـم لـه جنګـه نــور مــي مــه زوروه
بــس دی وطــن زمــا بربــاد دی نــور فســاد نــه غــواړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فریــاد دی تــا آبــاد نــه غــواړي

خپــل يــې هــر کــور تــه اسـانتياوي د تعلـيم پـوره کـړې
زمــا د مکتــب پــه ســوځيدو هيلــي غلــيم پــوره کــړې
زمـوږ هـر اُسـتاد لکـه رشـاد دی ځـوک يې ښاد نـه غـواړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فریــاد دی تــا آبــاد نــه غــواړي

چــي شــپه او ورځ مــي کــړوې دا بــه مــي کلــه هېــر ســي
ورور مــي پــه ورور حــلا لــوې دا بــه مــي کلــه هېــر ســي
زمــا زړګــي تــه اتــک يــاد دی بــل جهــاد نــه غــواړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فریــاد دی تــا آبــاد نــه غــواړي

پرېــږدی يــارانو چــي پــه غرونــو کــي ســاده اوســمه
د يــو غــدار غونــدي پــه لــوړ بلــډينګ کــي نــه اوسـمه
ګــوره د ده ســره ســواد دی جــوړ هيــواد نــه غــواړي

ځکـه پـر خـو لـه زمـا فريـاد دی تـا آبـاد نـه غـوا ړي

ای د پـــردېس د ماشـــوم تـــو ب د ورځـــو شـــپو وطنـــه
ســتا د بچيــانو پــه کومــک وران کــړې پــردو وطنــه
د ډېـرو خـــو ړلـــی اعتمـــاد دی انتقـــاد نـــه غـــوا ړي
ځکــه پــر خولــه زمــا فريــاد دی تــا آبــاد نــه غــوا ړي

۱۳۸۵\۲\۱۰

# اشنا په ياد يې لره

زمــا يــو ورور د هغـــه بـــل غونـــدي پـــه بـــم وا لـــوزي
ښـــکلې ځـــواني لـــري د ګـــل غونـــدي پـــه بـــم وا لـــوزي
هلتــه بــه پــوه ســې چــي د خپــل لاســه دي اور اخســتی
اســـلام آبـــاد چـــي د کابـــل غونـــدي پـــه بـــم وا لـــوزي

۱۳۸۲\۲\۲۰

## ارواح ښاد عبدالصمد روحاني ته

لــه دُنیــا تللــی روحــاني پــر دغــه لار نــه راځــي
پــه دې پــوهیږم بیــا مــي هــم زړه تــه قــرار نــه راځــي
پــه دا ســي ظلــم دي جــامي ورتــه پــه وینــو ســري کــړې
لکــه پــر تــا چــي تــر قیامتــه د مــرګ وار نــه راځــي

## په یاد کي سلګۍ

دا حقیقـــــت دی پـــــه وعـــــده دی مرګـــــی
خـــو ګـــران لحـــد تـــه ارمـــاني تللـــی دی
هلمنـــد ســـلګۍ پـــه وچـــو شـــونډو وهـــي
چـــي یـــي لـــه غیـــږي روحـــاني تللـــی دی

د انســـــان وینـــــه بـــــې ارزښـــــته ګڼـــــي
د وحشــــت زړه رابانـــــدي نـــــه یخېـــــږي
د ارمـــــانو نـــــو جنــــازي وتلـــــــي
د اُمیــــدونو خــــو نــــوم نــــه یــــاد ېږي
لکـــه ماشـــوم دوســـت دښـــمن نـــه پیژنـــي
د مــــرګ وزر لانــــدي مــــو ژونــــد پټېږي
دا ســـي ګنـــاه روحـــاني نـــه وه کـــړې
چـــي پـــه ســـزا کـــي یـــي لحـــد رســـېږي

بــې وســه اوښــکي مــي لــه ســترګو څــاڅي
پـــه دې پلمــــه چـــه د زړه غـــم کمېـــږي

پرحـــق وينـــا يـــي جنـــازه ســـوه رهـــي
پـــر حقيقـــت يـــو قربـــاني تللـــی دی
هلمنـــد ســـلګۍ پـــه وچـــو شـــونډو وهـــي
چـــي يـــي لـــه غيـــرېي روحـــاني تللـــی دی

د خپـــل ولـــس پـــر بېوزليـــو بانـــدي
پـــه چيغـــو چيغـــو ژړيـــدی روحـــاني
ځـــان يـــي شـــريک د بـــل پـــه غـــم کـــې ګڼـــی
چـــي کلـــه کلـــه مـــي ليـــدی روحـــاني
د ســـولي امـــن پـــه ارمـــان بـــه وو تـــل
د جنـــګ پـــه اور کـــي ســـوځيدی روحـــاني
زمـــوږ خلـــک ولـــي پـــر مختـــګ نـــه غـــواړي
داســـي بـــه مـــا تـــه رېغيـــدی روحـــاني
چـــي يـــي پـــه ټولـــه ژونـــد ليـــدلی نـــه وو
لـــه هغـــو هـــم نـــه وو پـــردی روحـــاني

نـــه يـــي غوښـــتله د وطـــن تبـــاهي
نـــه لـــه دُنيـــا نـــه تـــاواني تللـــی دی
هلمنـــد ســـلګۍ پـــه وچـــو شـــونډو وهـــي
چـــي يـــي لـــه غيـــرېي روحـــاني تللـــی دی

روحـــاني وړی بـــه دي وي دا ارمـــان
چـــي د دوســـتانو ډک وطـــن پاتـــه ســـو
د صـــداقت بـــدل يـــي داســـي درکـــی
هغـــه پرهـــر دي پـــر بـــدن پاتـــه ســـو

هغــــه هلمنــــــد چــــي يــــي ثپــــې وهلــــې
چــــي کلــــه تــــه ولاړې غمجــــن پاتــــه ســــو
اوس پــــه تصــــوير دي تنــــده نــــه مــــاتېږي
ســــتا راســــره آخيــــر ديــــدن پاتــــه ســــو
يــــاد دي تــــازه ســــاتمه وخــــت دي تيرســــي
زه وايــــم کلــــی درنــــه نــــن پاتــــه ســــو

پــــردېس پــــه دې خبــــره پــــوه ســــوم ســــهي
ځــــوان پــــه مرمــــۍ د نــــاځواني تللــــی دی
هلمنــــد ســــلګۍ پــــه وچــــو شــــونډو وهــــي
چــــي يــــي لــــه غيــــرې روحــــاني تللــــی دی

۱۳۸۷\۳\۲۱
د شپې يو ه بجه

# خوب

چــــي ســــم بيــــده پــــه خــــوب دي ويــــنم يــــاره
تصــــوير دي زمــــا ســــترګو تــــه وړانــــدي راســــي

ویښ سـم لــه دا ســي ښــکلي خوبــه ولــي
پــر خولــه د غــم ســلګۍ او ســاندي راســي

څــومره اثــر دي وو پــه دوو ســترګو کــي
د ژونــدون لاره یــې کــړه و رکــه رانــه
یــوه خــوږه خــاطره خــوب کــي اشــنا
شــپه تــر ســهاره یــې کــړه ورکــه رانــه
زمــا اُمیــد زمــا د ژونــد خوشــحالي
بــس بــې اختیــاره یــې کــړه و رکــه رانــه
شــهید ارمــان تــه مــي دُعــا زده کــړې
خــو تــر مــزاره یــې کــړه و رکــه رانــه
جانانــه دغــه ســتا د کلــي کوڅــه
پــه څــو څــو واره یــې کــړه و رکــه رانــه
خپــل او پــردي بــه مــي کتلــه پکښــې
د زړه هنــداره یــې کــړه و رکــه رانــه
مــا دي کیســه لیکــل د ښــکلو ســترګو
پــس لــه تکــراره یــې کــړه و رکــه رانــه
آخیــر مجبــوره ژړیــدو تــه ســومه
بــل هــره چــاره یــې کــړه و رکــه رانــه

د یــار د حُســن یاغیتوبــه ولــي
زړګــی مــي ســتا تــر تــاثیر لانــد ي راســي
ویښ ســم لــه دا ســي ښــکلي خوبــه ولــي
پــر خولــه د غــم ســلګۍ او ســاندي راســي

کلونـــــه و ســـــوه زمـــــا پـــــه زړه کـــــي اوســـــي
یـــــار نـــــا خبره دی کـــــه نـــــه پـــــو هیـــــږي
هـــــر قـــــدم ږدي د زړه پـــــر ســـــر دا ښـــــکلي
د خپـــــل ښـــــکلا پـــــه قـــــدر څـــــه پـــــوهیږي
شـــــونډي انکـــــار کـــــوي خـــــو ســـــترګي دي نـــــن
پـــــه زړه راکښـــــونکي اشـــــاره پـــــوهیږي
غـــــوږیـــــې نیـــــولی تـــــر ســـــهاره پـــــوري
ســـــتوري د مینـــــي پـــــه کیســـــه پـــــوهیږي
اوس هیـــــرول یـــــې نـــــا ممکن ګڼمـــــه
کلـــــه مـــــي زړه پـــــه بهانـــــه پـــــوهیږي
زمـــــا و مـــــرګ تـــــه رقیـــــب مـــــه رالیـــــږه
پـــــه دې خبـــــره دي بانـــــه پـــــوهیږي
د اوس پـــــه ښـــــکلو کـــــي پـــــه ســـــلو کـــــي یـــــو
ســـــته پـــــه ســـــپیڅلې یارانـــــه پـــــوهیږي
چـــــه ســـــتا غـــــرور مـــــي پـــــه مجبـــــوره زړګـــــي
نـــــور څـــــه کـــــوي یـــــو الله (ج) ښـــــه پـــــوهیږي

پـــــر مـــــا رانغلـــــې لیونتوبـــــه ولـــــي
غمونـــــه تـــــول راپـــــوري خانـــــدي راســـــي

ویښ ســـــم لـــــه داســـــي ښـــــکلي خوبـــــه ولـــــي
پـــــر خولـــــه د غـــــم ســـــلګۍ او ســـــاندي راســـــي

لکـــــه شـــــبنم د ګـــــل پـــــر مـــــخ بیـــــده وم
لکـــــه خپـــــل مینـــــه د ښـــــکلا ســـــره وم
مـــــوږ ماشـــــومان وو لوبېـــــدلو بـــــاغ کـــــي

زه درنـــــه پـــــټ د ونــــو خــــوا ســــره وم
چـــا راتـــه وويـــل ســـته سنګســـار مينـــه کـــي
حيـــــــــــران ولاړ د زړه د رزا ســــــــــره وم
نــــه مــــي د مينــــــي نــــاز ادا پيژنــــــدل
نــــه يــــې مــــخ ســــوی د ســــزا ســــره وم
دا خلــــــک ځــــــو مره مهربــــــان ښــــــکاريدل
زه يــــــې پــــــرې ايښــــــی د اشــــــنا ســــــره وم
خــــو شــــپه د ســــترګو رپ کــــي تيــــره ســــو لــــه
ســــــهار د فکــــــرا و ســــــودا ســــــره وم
راســــه دې خــــوب تــــه کــــوم تعبيــــر ورکــــوې !
غــــاړه غــــړې يــــاره لــــه تــــا ســــره وم

خــــاوري ايــــرې ســــوې مئينتوبــــه ولــــي
پــــر مــــخ مــــي مــــړې اوښــــکي ځلانــــدي راســــي
ويښ ســــم لــــه داســــي ښــــکلي خوبــــه ولــــي
پــــر خولــــه د غــــم ســــلګۍ او ســــاندي راســــي

انســــانيت تــــر ســــرليک لانــــدي يــــاره
د ښــــتنې مينــــــي ســــوګند غواړمــــــه
يــــوه شــــېبه د جــــدايي چــــي راځــــي
پــــه مــــرګ خوشــــحال يــــم کلــــه ژونــــد غواړمــــه
چــــي مــــي د زړه کورتــــه نفــــرت راولــــي
د هغــــي ژبــــي کــــلام بنــــد غواړمــــه
د محبــــت نــــه جــــوړه ســــوې دُنيــــا

د مینـــــــي نــــــوم پکښـــــې بلنــــــد غوا ړمـــــــه
کلـــــه نـــــا کلــــه مـــــي ماشــــــوم زړه وایـــــي
جانانــــــه خـــــوب دي پـــــر مړونــــــد غوا ړمـــــه
اوس یـــــاراني تـــــه دي زړه کیــــــږي کـــــه نـــــه
د هـــــو یــــا نــــه ځــــواب څرګنـــــد غوا ړمــــــه
کــــه ســــوې منکـــــر د مینــــــي ځــــم بــــه درنـــه
پـــــرد ېس رخصـــــت لـــــه تــــول هلمنـــــد غوا ړمــــه

ختمـــــوې زمـــــا د ژونـــــدون لوبـــــه ولــــــي
غــــم بـــــه دي یــــاره پـــــه زړه بانـــــدي راســــي
ویښ ســـم لـــــه داســـي ښـــکلي خوبـــه ولــــي
پـــر خولـــــه د غـــم ســـلګۍ او ســــاندي راســـي

۱۳۸۵\۳\۲۸

## مه را ځه

خپلــې را تــــه وویــــل نــــور زمــــا دیـــدن تـــه مــــه را ځــــه
بـــس دی ای زړګیـــــه د اشـــــنا دیـــدن تــــه مـــه را ځــــه

خپلـــې را تـــه وويـــل مـــه را ځـــه قـــدم تـــر شـــا پرېـــږده
وران مـــــي يادګارونـــــه کـــــه او لاره د وفـــــا پرېـــــږده
مينـــه ځـــه تـــه وايـــي ښـــکلی نـــوم پـــرې د ســـودا پرېـــږده
ټـــوکي يـــي و نـــه ګڼـــې رښـــتيا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه
بـــس دی ای زړګيـــه د اشـــنا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه

خپلـــې را تـــه وويـــل زمـــا زړه کـــي دي محبـــت نســـته
ګرانـــه دي يـــاري ده ګرانـــه جيـــب کـــي دي دولـــت نســـته
هـــر څـــه پـــه پيســـو دي دلتـــه مينـــه حقيقـــت نســـته
نـــن دي الله خيـــر کـــړي ســـبا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه
بـــس دی ای زړګيـــه د اشـــنا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه

خپلـــې را تـــه وويـــل نـــه وا کـــدار دي د وربـــل ګـــڼم
نـــه مـــي خپلـــولا ی ســـې نـــه دي زه دومـــره اتـــل ګـــڼم
بـــل وار چـــي را ځـــې همدغـــه ځـــای کـــي دي اجـــل ګـــڼم
وا وره د رقيـــب نـــه بـــې پـــروا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه
بـــس دی ای زړګيـــه د اشـــنا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه

خپلـــې را تـــه وويـــل ای زړګيـــه اوس هـــو ښـــيار ســـولې
دا يـــــي نتيجـــــې پـــــه يـــــارۍ د اعتبـــــار ســـــولې
ختمـــــي دي پردېســـــه مرحلـــــې د انتظـــــار ســـــولې
مـــړ کـــه ســـوم پـــه چيغـــو پـــه ژړا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه
بـــس دی ای زړګيـــه د اشـــنا ديـــدن تـــه مـــه را ځـــه

# قاتلي سترګي

ژوند مې سو تباه تبـاه تـا را تـه خندلي دي
مه ګوره اشنا سترګي دي قاتلي دي

ته ول د ګلستان ګلان مخ ته دي حيران سو له
پاڼي پاڼي ولويدل بې وخته خزان سو له
ستا له دې ښکلا ښکلا ياره شرميدلي دي
مه ګوره اشنا اشنا سترګي دي قاتلي دي

زه دي كړم ايره ايره يو نظر كاته باندي
رحم ولي نه كوې زما بې وسه زړه باندي
ګرځم پر صحرا صحرا پاته را نه كلي دي
مه ګوره اشنا اشنا سترګي دي قاتلي دي

در به سم په هغه ورځ سره اوركي كه لاره وي
دا رته به سم پو رته زه مرګ كه ستا لپاره وي
وا يمه صفا صفا هر څه مي منلي دي
مه ګوره اشنا اشنا سترګي دي قاتلي دي

خداى دي را نه هير مه كړه اوسې مي د زړه كور كي
خداى دي تل آباد لري ته چي يې هغه كور كي
ما وكړه دُعا دُعا تا آمين ويلي دي
مه ګوره اشنا اشنا سترګي دي قاتلي دي

دا وینــا مـــي وا وریـــده ښــه لـــه درنـــو خلکـــو نـــه
ســـر ســـه د پـــرد ېس قربـــان تـــل د هغـــو خلکـــو نـــه
څـــوک چـــي د وفـــا وفـــا لاره بانـــدي تللـــي دي
مـــه ګـــوره اشـــنا ســـترګي دي قـــاتلي دي

۱۳۸۴\۱۰\۱۱

وصیت

پــــــر لار دي د را تلــــــو کــــــه وم وژلــــــی انتظــــــار
جانانــــه بــــې وفــــا یــــو ځــــل مــــې را ســــه تــــر مــــزار

قســــم د نــــه را تللــــو کــــه دي کــــړي مــــا خبــــر کــــړه
نــن ورځ دي هــم پــر مــا پــه انتظــار کــي مــا زدیګر کــړه
کــه ســتا تــر را تلــو پــوري زمــا روح نــه ســو حصــار
جانانــه بــې وفــا یــو ځــل مــې را ســه تــر مــزار

ارمــان د خند بــدو بــه دي وي زمــا پــر زړګــي پاتــه
را ځــې بــه پــه خنــدا لاســونه پورتــه کــه دُعــا تــه
چــي خــدای مــي ګنــاه وبخښــي زه ډېــر یــم ګناهکــار
جانانــه بــې وفــا یــو ځــل مــې را ســه تــر مــزار

ســتم را بانــدي ډېــر وکــه خــو نــن بلــه ورځ نــه
مــنم ســتا پــه ســینه کــي دی د کــاڼي غونــدي زړه
پــه خپلــه ملامــت یــم چــي پــه تــا کــړم اعتبــار
جانانــه بــې وفــا یــو ځــل مــې را ســه تــر مــزار

چــي نــه را ځــې اشــنا ډېــره ترخــه ده زنــدګي
پــه ژونــدکي مــي را غلــې اوازه ده د مرګــي
پــر شــونډو چــي دي بیــا را غلــه لفظونــه د انکــار
جانانــه بــې وفــا یــو ځــل مــې را ســه تــر مــزار

خــولې د زکنــدن مــي ســوې پــر مــخ بانــدي را مــاتي
زه ځمــه تــه پــاتېږې اندیښــنې مــي ســو لــې زیــاتي

خوکاشکي ستا پر سر یېږ وای وژلی په سنګسار
جانانه بې وفا یو ځل مي را سه تر مزار

اوس ستا د لاسه ستا د مخ لیدو اجازه نسته
پر قبر بیا زما د ژړیدو اجازه نسته
ماشوم زړه دي ماشوم غوندي په خپله کړه قرار
جانانه بې وفا یو ځل مي را سه تر مزار

تر مرګه رسیدلی چي ستا سترګو دی ویشتلی
دُعا به ورته دومره کړې چي څومره دي رټلی
وژلی ستا غمونو دی پردېس نه وو بیمار
جانانه بې وفا یو ځل مي را سه تر مزار

۱۳۸۲\۵\۱۲

اُمید

لا وار په وار پسې زیاتېږي
ستا په لیدو د نظرتنده
ستا ادا ګاني مې خوښېږي
د خماري سترګو خاونده

چې را ته وګورې نه ګورم
طاقت دي نه لرم د سترګو
د خنجرونو نه ځان ژغورم
زړه به ساتم د بڼو غبرګو
دلته زخمي زړه نه جوړېږي
د مرهمونو لار سوه بنده

کرکه سبځې د مینې اوره
زموږ په زړونو کې بل اوسه
د اشنا نوم د زړه ټکوره
تل مې پر شونډو غزل اوسه
په رمز د مینې چې پوهېږي
تر هغو جار سه زما ژونده

نور درته هیڅ ویلای نه سم
پر ما له خپله ځانه ګرانه
کله به یو ځل در په زړه سم

دا را ته ووایه جانانه
چې تیر وختونه را یادېږي

خـــــود بـــــه دا ورځـــــي وي بـــــې خونـــــده

ثـــــه چـــــي کـــــوې خوښـــــه دي خپلـــــه
وخـــــت لاس تړلـــــی پـــــه لاس درکـــــړم
کاشـــــکي خبـــــر وای د اولـــــه
بـــــې وفـــــا وروســـــته دي خبـــــر کـــــړم
چـــــي زړه دي زمـــــا ســـــره اوســـــېږي
پردېســـــه مـــــه ځـــــه د هلمنـــــده

ســـــتا ادا ګـــــاني مـــــي خوښـــــېږي
د خمـــــاري ســـــترګو خاونـــــده

لاوارپـــــه وار پســـــې زیـــــاتېږي
ســـــتا پـــــه لیـــــدو د نظرتنـــــده
ســـــتا ادا ګـــــاني مـــــي خوښـــــېږي
د خمـــــاري ســـــترګو خاونـــــده

۱۳۸۵\۱۲\۱۰

## د غمونو جنازې

د غمو جنازې باسي
تر خوږه خندا دې جار سم
که دې دوې سترګي پنا سي
لیونیانو کي به شمار سم

د رقیب په مخ کي یو ځل
د اشنا ناره که
پر ما توره شپه رڼا که
پر ده سپینه ورځ تیاره که
ټینګه غیږه را که یاره
ته لمبه سه ما ایره که
ډېر غمونه را نه وا خله
لږ یادونه را سره که
د غوصې منځ کي خندا دي
زما ژوند ته خاطره که
مینه پټه سا ته زړه کي
خو نازونه یې ښکاره که
بیا مي وسوځه بې اوره
بیا هغسي اشاره که

که لا زیا ته دي ښکلا سي
یا به ورک یا به بیمار سم

که دې دوې سترګي پنا سي
لیونیانو کي به شمار سم

ټینګیدلای ورته نه سم
چي دي ښکلي اننګي سوه
په خاطر دي را ته ګرانه
ډېره ګرانه زندګي سوه
پنا کیږم دي له سترګو
چي بانه یې ټول جنګي سوه
د خانې دي مبارک سه
زما خوښه ملنګي سوه
په دُعا باندي مي ستړي
دوه لاسونه د زړګي سوه
په زړګي کي مي اور بل دی
په هوا پورته لوګي سوه
صداقت تېي ماته ورکړه
زور وره دي ټګي سوه

چي د هجر شپه سبا سي
پوه په قدر د سهار سم
که دي دوې سترګي پنا سي
لیونیانو کي به شمار سم

ملامت یمه بې حده
ډېر غلط وم پوهیدلی
پیژندل دي ځکه ګران وه
ځان مي نه وو پیژندلی

قناعت مې زړه ته ورکی
نه خپل کیږي دغه ښکلی
خپل غریب ژوند ته مې پام سو
زما له سره عقل تللی
په کوخو کې نه ځایېږم
ډک له کبره دی ستا کلی
را ته ووایاست ملګرو
چا زما اشنا لیدلی ؟
عادتونه یې اغزي دي
مخ یې ګل دی غوړېدلی

که مې تللی اشنا را سي
زه به مور په انتظا سم
که دي دوې سترګي پنا سي
لیونیانو کې به شمار سم

ستا ځواني دي خاوري نه سي
ستا دیدن خوږه شېبه ده
ستا را تلل مې خوشحالي ده
ستا بېلتون د اور لمبه ده

ستا دي سترګو ته را نجه سم
ستا بڼو نه مې توبه ده
ستا د یاد باغچه مې زړه کې
ستا دیدن باندي اوبه ده
ستا قدم ته سومه خاوري

ستا څه خامه تجربه ده
ستا د زړه خوښه چلیږي
ستا د حُسن دبدبه ده
ستا په یاد کي مي ځان هیر دی
ستا په مینه کي جذبه ده

ستا ملګري دي وفا سي
ستا جفا نه دي اوزګار سم
که دي دوې سترګي پنا سي
لیونیانو کي به شمار سم

د هلمند د سیند پر غاړه
څه خوږې کیسې د میني
درته یاد دي که دي هیر دي
د سپین مخ خبري سپیني
چي یو ځای به سره ناست وو
هغه ورځې وې رنګیني
اوس بلا را غلې هلته
مدام خوري د انسان ویني

څو ځوانان یې کړه په نښه
څو یې تیر کړله تر ستوني
په لمبو کي ګلاب سوځي
غوټۍ ژاړي ارمانجني
تل په یو بل پسې اورم

اعلانونــــــــــــــه دي د مړينــــــــــــــي

خـــــوار زړګـــــی مـــــي پـــــه ژړا ســـــي
خـــــوار پـــــردېس څنګـــــه قـــــرار ســـــم
کـــــه دي دوې ســـــترګي پنـــــا ســـــي
ليونيـــــانو کـــــي بـــــه شـــــمار ســـــم

۱۳۸۲\۵\۵

## وژړېدو

چـــــي واک د ځـــــان نـــــه لـــــري
د ژونـــــد ارمـــــان نـــــه لـــــري
درد يـــــي درمـــــان نـــــه لـــــري
د هغـــــه چـــــا نـــــه را جـــــلا ســـــه

زړه بســـم الله کـــه پـــه خنـــدا ســـه

کـــــه خوشـــــحالي چيـــــري وي
مـــا تـــه يـــي را کـــړه خدايـــه
کـــــه پســـــرلي چيـــــري وي
مـــا تـــه يـــي را کـــړه خدايـــه
تښـــــي ګريـــــوان نـــــه لـــــري
وطـــــن ګـــــلان نـــــه لـــــري
صـــــبر پـــــر کړونـــــو د الله ســـــه
زړه بســـم الله کـــه پـــه خنـــدا ســـه

چـــــي د پيســـــو لپـــــاره
دُنيـــا کـــي ژونـــد تيـــر وي
د خپـــــل فايـــــدو لپـــــاره
دُنيـــا کـــي ژونـــد تيـــر وي
ژونـــد يـــي عنـــوان نـــه لـــري
چـــي يـــو جانـــان نـــه لـــري
پـــر هغـــو ورانـــه دا دُنيـــا ســـه
زړه بســـم الله کـــه پـــه خنـــدا ســـه

اوس لاس تړلـــــــــي يمـــــــــه
پـــــــــه زولنـــــــــو د ازل
يـــــو ځـــــل بـــــه ونـــــازېږم
پـــــه ګـــــل غنچـــــو د ازل
حاجـــــت بيـــــان نـــــه لـــــري
أميـــــد تـــــاوان نـــــه لـــــري
وژړيـــــدو د خپلـــــه لاســـــه

زړه بســـــم الله کـــــه پـــــه خنـــــدا ســـــه

د ښـــــــکلي مـــــــــخ کتوتــــــــــه
نـــــــــن بهانــــــــــه جـــــــــــوړوم
د حُســــــــــــــن دي لمبوتــــــــــــه
نـــــــــن بهانــــــــــه جـــــــــــوړوم
ســــــــترګي ګُمـــــــان نـــــــه لــــــري
د ليــــــدو تــــــوان نـــــــه لــــــري
اوس مبــــــارک دي د ښـــــــکلا ســــــه
زړه بســـــم الله کـــــه پـــــه خنـــــدا ســـــه

د چـــــــا نظـــــــــر وخـــــــــوړل
مـــــــــــازديګري پرد بســـــــــــه
د غـــــــم لښـــــــکر وخـــــــوړل
مـــــــــــازديګري پرد بســـــــــــه
رحــــــم جهـــــــان نـــــــه لــــــري
ګنـــــاه افغـــــان نـــــه لــــــري
وطنــــــه چـــــا ويـــــل کـــــربلا ســــــه
زړه بســـــم الله کـــــه پـــــه خنـــــدا ســـــه
۱۳۸۲\۵\۱۳

## ستمګر

درســــــره مينــــــه کـــــوم مــــــه کـــــړه ظلمونــــــه
د ورځــــي تـــــه نــــه را ځـــي د شـــپې خـــو بونـــــه

صبر مي نور د زړګي نسته دلبره
ما څه ګناه کړي ده يم نا خبره
ولي دي بند کړل پر ما خپل ديدنونه
د ورځي ته نه را ځې د شپې خوبونه

پوه سو له خلک یاره زموږ په مینه
چي ستا پېغور را کوي ما کړوینه
کلي ته کله را ځې تیر سوه کلونه
د ورځي ته نه را ځې د شپې خوبونه

سترګي مي سرې وګوره ډېر مي ژړلي
غمګیني ښکاري کوڅې زموږ د کلي
مرګ را پسې دی پرېږده دا سي خویونه
د ورځي ته نه را ځې د شپې خوبونه

د نن نه پس مي اشنا دا فیصله ده
پردېسه جنګ نه کوم یوه ګیله ده
که نه را ځې مه را لیږه سلامونه
د ورځي ته نه راځې د شپې خوبونه
د هلمند د سیند غاړه ۱۳۸۵\۳\۶

## مننه

کور دي ودان بېلتونه ښه دي کړي
چي مي اشنا نه را پر برېدې کلي ته
د نازولو نه خوبونه اخلي

د غـــم بـــلاوي ولويـــدې کلـــي تـــه

پـــه تـــورو غرونـــو کـــي يـــي ژونـــد کړي دی
د ښـــار ګردونـــو ســـره نـــه دی بلـــد
لـــه اننګـــو يـــي معلـــو ميږي دا ســـي
چـــي لـــه غمونـــو ســـره نـــه دی بلـــد
پـــه تـــورو ســـترګو تـــور را نجـــه لګـــوي
د تورتمونـــو ســـره نـــه دی بلـــد
لمبـــي د مينـــي يـــي پـــر زړه را تـــاو دي
نـــورو اورونـــو ســـره نـــه دی بلـــد
يـــار مـــي د ګـــل ســـره مجلـــس خوښـــوي
د نفرتونـــو ســـره نـــه دی بلـــد

زمـــا پـــر لـــور چـــي قدمونـــه اخلـــي
ډېـــر يـــم خفـــه چـــي را ځـــي دې کلـــي تـــه
د نـــازولو نـــه خوبونـــه اخلـــي
د غـــم بـــلاوي ولويـــدې کلـــي تـــه

د زړه پرهـــر ورتـــه ښـــوولای نـــه ســـم
اشـــنا زهيـــر بـــه ســـي پريشـــانه بـــه ســـي
د خوشـــحاليو نـــه بـــه ليـــري ولاړ ســـي
پـــر خپـــل خنـــدا بانـــدي پښـــيمانه بـــه ســـي
کـــه يـــي زمـــا ســـترګو تـــه وکتلـــه
دی بـــه هـــم وژاړي ناتوانـــه بـــه ســـي

اشنا د خپله حاله نه خبروم
زما په غم کې ورک له ځانه به سي
زموږ د کلي حالات دا سي وايي
هديره جوړه کوڅه ورانه به سي

هر څوک اغزي پرېږدي ګلونه اخلي
هر چا را وړي دي فايدې کلي ته
د نازولو نه خوبونه اخلي
د غم بلاوي ولويدې کلي ته

هغه وخت غواړم د يار سر په امان
د کلي منځ کې چې جګړه ووينم
يو د خپل ژوند ارمان ته فکر وړی
ورته د بل لاس کې چاړه ووينم
لمونځ په جماعت کړي د انسان غوښې خوري
زورېږم ډېر چې دا کړه وړه ووينم
زه هم له ژونده مرور ګرځمه
چې تر ځان ښکلي ځوانان مړه ووينم

را کړئ خنجر څيرم سينه د قاتل
چې يې له رحمه خالي زړه ووينم

د بل د غمه چې خوندونه اخلي
خدايه هغه کړې بې پردې کلي ته
د نازولو نه خوبونه اخلي

د غم بلاوي ولويدې کلي ته

موږ د انصاف څخه بې برخي خلک
موږ د انسان د زړه احساس وژلی
موږ پرې زړګی د خپل دُښمن يخ کړی
موږ سکنی ورور په اخلاص وژلی
موږ د تيارو سره ژوندون خوښوو
موږ بل څراغ په دغه لاس وژلی
زموږ نازولی د دې پاکي خاوري
موږ د پرديو په شاباس وژلی
موږ يرغلګر سره احتياط کړی دی
موږ خپل ولس دی عام و خاص وژلی

موږ ته به بيا څوک کفنونه اخلي
موږ کړي خرابي ارادې کلي ته
د نازولو نه خوبونه اخلي
د غم بلاوي ولويدې کلي ته

سهار له توري شپې خپلواکه نه دی
په غم لړلی مازديګر تيرېږي
شبنم ترګله پوري نه سي را تلای
خو تل باروت ورته پر سر تيرېږي
که يار مي دا حال له نږدې و ويني
غم بې پر زړه او پر ځيګر تيرېږي
نو ځکه نه غواړم ديدن د اشنا

پـــــر مـــــا قیامـــــت پـــــر ده اختـــــر تیربـــــږي
ببېلتونـــــه تـــــه بـــــه ورتـــــه دا ســـــي وایـــــې
خوشـــــحاله ژونـــــد پر دلاور تیربـــــږي

چـــــي د پـــــردېس اشـــــنا خطونـــــه اخلـــــي
زړه بـــــې بیـــــا نـــــه ســـــي را نـــــږدې کلـــــي تـــــه
د نـــــازولو نـــــه خوبونـــــه اخلـــــي
د غـــــم بـــــلاوي ولویـــــدې کلـــــي تـــــه

۱۳۸۷\۷\۱۴